# د لنګوټې فضایل او مسایل



مؤلف:

**مولوي احمد شاکر**

عضو دارالافتاء جامعه اسلامیه اشرفیه

# د کتاب پېژندنه


- د کتاب نوم : دلنګوټې فضایل او مسایل
- مؤلف : مولوي احمد شاکر
(عضو دار الافتاء جامعه اسلامیه اشرفیه)
- خپروونکی : جامعه اسلامیه اشرفیه/ کندهار
- کمپوز/ډیزاین : روهیال کمپیوټر اداره/ کندهار
- کمپوزر : مطیع الله روهیال
- لومړی چاپ : ۱۳۹۰ ش = ۱۴۳۲ق
- چاپ شمېر : ۱۰۰۰ ټوکه
- کچه : ۲۱×۱۳/۵۰ سانتي متره
- د مخونو شمېر : ۱۰۰مخه

# ډالۍ

خپلو هغو قدرمنو استاذانو ته چي د علم په سپېڅلي ډګر کي د دوی
زيار هره شېبه راسره مل وو او د دوی پېرزوينو د ژوندون په هر درشل
کي هيڅ راڅخه ونه سپمول!

احمدشاکر

# تقريظ

بسم الله الرحمن الرحيم

نحمده ونصلي على رسوله الكريم

امابعده!

درنو لوستونکو!

څرګنده خبره ده، چې د درست بشريت ښېرازي او سوکالي د الله ﷻ او رسول الله ﷺ په پوره اطاعت کې ده او الله ﷻ هم د دې لارې ښوونه کړې ده او فرمايي:

وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانتَهُوا... [حشر:۷]

ژباړه:

او کوم څه، چې رسول ﷺ تاسو ته راوړي (لارښوونه درته وکړي) نو (نوموړې لارښوونه) واخلئ (يعني عملي ئې کړئ) او د کوم څخه، چې مو منعه کړي ځني منعه سئ.

د پورته خبرې په نظر کې نيولو سره د هرې ټولنې مخور، روڼاندي او علماء اړ دي څو خپل نالوستي او کم علمه خلک په الهي او نبوي ارشاداتو پوه کړي، هغه لارې ورته په نخښه کړي کومې چې د ټولنې د حقيقي ګټې په معنا دي او رشتينی برياليتوب پکښې نغښتی دئ، په دغه لړۍ کې د اشرفيې مدرسې د دارالافتاء يو تن غړي مولوي احمد شاکر صاحب په نبوي سنتونو کې يو بهترين سنت، چې د لنګوټې

ځخه عبارت دئ تر بحث او څېړني لاندي نیولی دئ، فضایل ئې بیان کړي، اړونده مسئلې ئې بیان کړي او بیا ئې د یوې رسالې په بڼه ترتیب کړ، یاده رساله د اشرفیې مدرسې د تالیف او ترجمې څانګي وکتله او تر کره کتني، تصحیح او تائید وروسته ئې ټولني ته وړاندي او هیله لري، چي مسلمه امت ګټه ځني پورته کړي او په اخره کي مؤلف او په دې لاره کي هر هڅاند ته د بریالیتوب دعا کوي.

په درنښت

د اشرفیې مدرسې د تالیف او ترجمې څانګه

| د تالیف او ترجمې د څانګي غړي | |
|---|---|
| **نوم** | **دنده** |
| مولوي محمدرسول | د مدرسې رئیس |
| مولوي عبدالهادي حماد | د مدرسې، تالیف او ترجمې د څانګي مدیر |
| شیخ الحدیث مولوي عبدالرحیم | شیخ الحدیث |
| مولوي سیداحمد غفوري | د دارالافتاء رئیس |
| مولوي محمد مجاهد | مدرس او نائب مهتمم |
| مولوي سیداحمد صابر | د دارالافتاء غړی |

# فهرست



## لومړۍ برخه



## دوهمه برخه

# دریمه برخه



# څلرمه برخه

# پنځمه برخه



# شپږمه برخه

## اوومه برخه



## اتمه برخه

## نهمه برخه



## لسمه برخه



## یوولسمه برخه

# دوولسمه برخه

# سریزه

## د ستر ښتن په سپېڅلي نامه

د کایناتو د پیدا کوونکي ثناء، ستاینه او د نړۍ پر ستر لارښود حضرت محمد ﷺ، د هغه پر کورنۍ او ملګرو ئې درود او سلام وړاند کوم. څرنګه چي لوی ښتن په خپل کتاب قرآنکریم کي د نبي علیه السلام د تابعدارۍ حکم کړی دئ او دا ئې د خپل محبت له پاره معیار ګرځولی دئ او د دې په مخالفت کولو باندي ئې وعیدونه (سزاوي) بیان کړي دي. هم دا رنګه د شریعت ستر لارښود حضرت محمد ﷺ په خپلو سنتو باندي د عمل کولو اړوند بشارتونه او زېري ټولني ته وړاندي کړي دي. بل اړخ ته د فتنو په دې ډک زمانه کي که وګورو نو په نظر راځي چي خلګ د اسلامي تعلیماتو څخه ورځ تر بلي ناآشنا کېږي، په عادتونو او تقلیدونو آن تر دې چي په شکل او صورت کي هم خلګو د سنتو تابعداري پرې ایښې ده او د غربیانو په تقلید اخته سوي دي.

اسلام چي چیري د عقیدو، عبادتونو او معاملاتو اړوند بیان کړی دئ هلته ئې د تهذیب، ثقافت، اخلاقو او عاداتو اړخ هم واضح کړی دئ او د انسان د پرمختګ له پاره ئې یو منظم او کامل د عمل نظام تیار کړی دئ، د یوه مسلمان استوګنه، د هغه شکل او صورت جوړول څرنګه چي په کار دي هم هغسي دا ټول اسلام واضح کړي دي. نو پر همدې اساس په اسلام کي لنګوټه تړل هم یو خوښ او د مسنوني جامې

(لباس) یوه کړی ده، خو متاسفانه چي نن سبا عوام خو پرېږده ان تر دې چي ځيني خواص هم دې طرف ته توجه نه کوي. نو له همدې کبله مي وغوښتل چي له خپل توان سره سم د خپلو ګرانو هيوادوالو په چوپړ کي په خپله مورنۍ ژبه (پښتو) د لنګوټې اهميت د قرآنکريم او حديثو په رڼا کي او د دې اړوند ځيني مهم مسائل سره راټول کړم او د يوه کتاب په بڼه ئې خپلي اسلامي ټولني ته وړاندي کړم، تر څو له همدې لاري وکولای سم چي د خپلي ايماني او انساني دندې د پر ځای کولو په موخه د خپل توان تر بريده د غمځپلي هيواد د درنو اوسېدونکو د خدمت جوګه سم، الله دي وکړي چي زما دا هيله به پوره سي او ګران هيوادوال به ور څخه ګټه پورته کړي.

ګرانو لوستونکو!

څنګه چي کامل علم له واحد الله ﷻ سره دئ، نو له همدې امله په کتاب کي ممکن تېروتني وجود ولري چي زه ځان په دې اړه پړ بولم او ستاسي له درانه حضور څخه د بخښني غوښتلو تر څنګ ښو او نېکو مشورو ته منتظر يم او له هغو ملګرو څخه چي د همدې کتاب د ليکني پر وخت ئې مرسته راسره کړې ده هم مننه کوم.

په درناوي

مولوي احمد شاکر

عضو دارالافتاء جامعه اسلاميه اشرفيه

اوله ناحيه -کندهار

۱۳۹۰/۲/۱۵ش

# لومړۍ برخه

## د سنتو تعریف او قدر

مناسب معلومېږي چي په دې موقع د سنتو تعریف او قدر بیان کړه سي، د دې له پاره چي د سنتو اهمیت څرګند سي او هر کس د نبي کریم ﷺ د مبارکو او نوراني سنتو د ژوندي کولو او پوره کولو له پاره کوښښ وکړي او د خپل ځان له پاره ئې شمع وګرځوي.

سنت هغه کار دئ چي رسول الله ﷺ، خلفاء راشدینو او اصحابو کرامو رضي الله عنهم کړی وي او د هغو تاکید ئې کړی وي.

رسول الله ﷺ فرمایي:

علیکم بسنتی و سنة الخلفاء الراشدین المهدین تمسکو بها و عضو علیها بالنواجذ[1].

ژباړه: تاسي پر ځان باندي زما او زما د هدایت پیدا کوونکو خلفاء راشدینو سنت لازم کړئ او د زامي په غاښو باندي ئې مضبوط ونیسئ (یعني په پوره توګه د عمل منګولي پرې ښخي کړئ).

---

[1] سنن الترمذي: دوهم ټوک، ۴۴ مخ [باب الاخذ بالسنة و اجتناب البدع].

## د سنتو د اتباع اړوند د نبي کريم ﷺ ارشاد:

عن انس رضي الله عنه قال: قال رسول الله: من احب سنتی فقد احبنی و من احبنی کان معی فی الجنة[1].

ژباړه: د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نبي کريم عليه السلام فرمايلي دي: چا چي زما د سنت سره محبت وکړ (يعني عمل ئې په وکړ) نو هغه زما سره محبت وکړ او څوک چي زما سره محبت کوي نو هغه به په جنت کي زما سره وي.

او همدارنګه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي:

عن ابي هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ: من تمسک بسنتی عند فساد امتی فله اجر مأة شهيد[2].

ژباړه: د حضرت ابي هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: چا چي زما د امت د فساد په وخت کي زما په يوه سنت باندي عمل وکړ د هغه له پاره د سلو شهيدانو اجر دئ.

د فساد په وخت کي د يوه سنت په عملي کولو سره د سلو شهيدانو ثواب ولي رسېږي؟

مولانا عبدالحق دهلوي رحمة الله عليه وايي:

هغه ته د سلو شهيدانو ثواب ځکه ورکول کېږي چي حقيقي شهيد ته کوم چي د کافرانو په مقابل کي جنګېدلی او شهيد سوی وي، يو ځل د زخم تکليف برداشت کول دي په دې وجه هغه د يوه شهيد ثواب تر لاسه کوي او دا سړی کوم چي د کافرانو او فاسقانو د غلبې په وخت کي

---

[1] رواه الترمذي، مشکوة: اول ټوک – ۳ مخ.

[2] مشکوة: اول ټوک – ۳۰ مخ [باب الاعتصام].

په سنت نبوي باندي عمل کوي، نو له هر طرفه د طعن او تشنيع د زخم ځخه هر وخت په جسماني او روحاني درد و غم کي اخته وي په دې وجه دغه سړي ته د سلو شهيدانو ثواب رسېږي.

په بل حديث مبارک کي راځي:

من حفظ سنتى اكرمه الله باربع خصال المحبة فى قلوب البررة والهيبة فى قلوب الفجرة و السعة فى الرزق والثقة فى الدين[1].

ژباړه: چا چي زما د سنتو حفاظت وکړ (يعني په صداقت سرهورباندي محکم واوسي او عمل په وکړي) نو الله تعالى به په ځلورو خبرو سره د هغه اکرام او عزت کوي:

1. د نېکانو خلکو په زړونو کي به د ده محبت پيدا کړي.
2. د فاسقانو او بد کارانو په زړونو کي به د ده هيبت واچوي.
3. رزق به ورته پراخ کړي.
4. په دين کي به پوخوالى ورپه نصيب کړي.

عن مالک بن انس ﵁ مرسلا قال قال رسول الله ﷺ تركت فيكم امرين لن تضلوا ما تمسكتم بهما كتاب الله و سنة رسوله[2].

ژباړه: د حضرت مالک بن انس ﵁ ځخه مرسل روايت دئ چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: ستاسي له پاره مي دوه شيان پرې ايښي دي تر ځو پوري چي مو دا دواړه شيان مضبوط نيولي وي تر هغو پوري به ګمراه نه سئ، يو د الله کتاب (يعني قرآن مجيد) او بل د نبي ﵇ سنت.

---

[1] شرح شرعة الاسلام: ۸ مخ.

[2] رواه فى الموطا، مشکوة شريف: اول ټوک – ۳۱ مخ [باب الاعتصام بالكتاب والسنة].

## د سنت له پیروۍ سره د محبت راز

حکیم الامت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله علیه وایي:

د نبي کریم ﷺ په اتباع کي د خاص برکت راز دا دئ کوم سړی چي د رسول الله ﷺ په شان شکل او هیئت جوړوي د هغه سره الله تعالی جل جلاله مینه او محبت کوي چي دا زما د محبوب هم شکله دئ نو دا د وصول (الله جل جلاله ته د رسېدو) تر ټولو لنډه لاره ده[1].

## د سنتو د معمولي ګڼلو انجام

په تفسیر عزیزي کي لیکي:

کوم سړی چي په آدابو کي سستي وکړي او معمولي ئې وګڼي هغه د سنت څخه محرومېږي او څوک چي په سنت کي سستي کوي او معمولي ئې وګڼي هغه د فرائضو پرېښودو په مصیبت اخته کېږي او څوک چي په فرائضو کي سستي کوي او معمولي ئې ګڼي هغه د معرفت الهي څخه محرومېږي[2].

## د سنت اهمیت او د مجدد الف ثاني واقعه

د حضرت محبوب سبحاني مجدد الف ثاني رحمه الله علیه په خدمت کي

---

[1] کمالات اشرفیه، د فتاوی رحیمیه: ج ۲، ص ۲۷۰ په حواله.

[2] من تهاون بالاداب عوقب بحرمان السنة و من تهاون بالسنة عوقب بحرمان الفرائض و من تهاون بالفرائض عوقب بحرمان المعرفت (تفسیر عزیزي: ۴۳۲ مخ، د فتاوی رحیمیه دوهم جلد، ۲۷۰ مخ په حواله).

د چشتیه طریقې یو بزرګ حاضر سو او پیشنهاد ئې وکړ چي ما ته د څو کالو څخه د حق په نسبت کي قبض وو. د حضرت خواجه باقي بالله په خدمت کي حاضر سوم او د قبض شکایت مي وکړ، نو د حضرت خواجه په توجه او دعا سره زما قبضي حالت په بسط باندي بدل سو، تاسي هم لږه توجه ما ته وکړئ ځکه حضرت باقي بالله رحمة الله علیه خپل ټول خلیفه ګان او مریدان تاسي ته حواله کړي دي.

حضرت مجدد الف ثاني رحمة الله علیه هغه ته په جواب کي وویل: زما سره خو د اتباع سنت څخه علاوه نور هیڅ نسته، د دې خبري په اورېدو سره پر هغه بزرګ باندي یو حال راغلی، ده ډېر نسبت او باطني قوت له اثراتو څخه د سرهند شریف مځکه په ښورېدو سوه، حضرت امام رباني یو خادم ته وویل چي له تاخچې څخه مسواک راواخله، هغه چي مسواک پر مځکه ودروئ سمدستي مځکه کراره سوه او د هغه بزرګ د جذبې کیفیت هم پر ختمېدو سو، له دې څخه وروسته هغه (امام رباني رحمة الله علیه) و بزرګ ته وویل: ستا په کرامت سره د سرهند مځکه په ښورېدو سوه او که فقیر دعا وکړي نو انشاء الله د سرهند مړي به راژوندي سي. لیکن زه ستا له دې کرامت (چي د مځکي ښورېدل دي) او خپل د کرامت (چي په دعا سره د سرهند د ټول مځکي مړي ژوندي سي) د اودس په دوران کي د سنت په طریقه مسواک وهل په ډېرو درجو افضل ګڼم[1].

---

[1] دیباجه درلاثاني، شاه محمد هدایت علي صبي پوري، ۳ جلد، ٦ - ۷ مخونه، د فتاوی رحیمیه دوهم جلد، ۲۷۱ مخ په حواله.

# دوهمه برخه

## لنګوټه د قرانکريم په رڼا کي

الله تعالى فرمايلي دي: إِذۡ تَقُولُ لِلۡمُؤۡمِنِينَ أَلَن يَكۡفِيَكُمۡ أَن يُمِدَّكُمۡ رَبُّكُم بِثَلَٰثَةِ ءَالَٰفٖ مِّنَ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ مُنزَلِينَ ﴿١٢٤﴾ بَلَىٰٓۚ إِن تَصۡبِرُواْ وَتَتَّقُواْ وَيَأۡتُوكُم مِّن فَوۡرِهِمۡ هَٰذَا يُمۡدِدۡكُمۡ رَبُّكُم بِخَمۡسَةِ ءَالَٰفٖ مِّنَ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ مُسَوِّمِينَ ﴿١٢٥﴾ [آل عمران: ۱۲۴-۱۲۵]

ژباړه: کله چي وويل تا مومنانو ته چي آيا بس به نه سي ستاسي دا چي مدد وکړي له تاسي سره رب ستاسي په درې زرو له فرشتو چي رالېږل سوي وې (له آسمان) هو (درې زره بس کېږي) که تاسي صبر وکړئ او وبېرېږئ (له الله ﷻ) مرسته به وکړي له تاسي سره رب ستاسي په پنځو زرو سره له فرشتو چي علامې لرونکي به وي.

په دې مبارکو آيتونو کي د مسومين لفظ ذکر سوی دئ، مسومين څه ته وايي؟

مسومين دا اخيستل سويدي د (تسويم) څخه چي په معنی د اظهار او علامې سره دئ نو لفظ د مسومين يا په صيغه سره د اسم المفعول تلاوت کېږي لکه د اکثر قراء په نزد چي حمزه، نافع، کسائي او

ابن عامر رحمهم الله دي او يا پر صيغه د اسم فاعل تلاوت کېږي لکه په نزد د ابن کثير او ابو عمر او عاصم رحمهم الله[1]، نو په معنی (د علامه لرونکي به وي) سره دي اوس د دې لفظ مبارک څخه په دغه آيت کي دا څرګنده سوه چي ملائکه علامه لرونکي به راځي، باقي دا خبره چي علامې به ئې څرنګه وي لنګوټې به وي، کالي به وي او که به بل شی وي. په دې باره کي قرآنکريم وضاحت نه دئ فرمايلی او د نبي کريم ﷺ په اقوالو کي د دې وضاحت داسي را نقل سوی دئ:

١ - عن علي رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ ان الله امدنی يوم بدر و حنين بملئکة يعتمون هذه العمة ان العمامة حاجزة بين الكفر و الايمان[2].

ژباړه: حضرت علي رضي الله عنه وايي چي نبي کرم ﷺ وفرمايل چي بېشکه الله جل جلاله زما د بدر او حنين په ورځ په داسي ملايکو سره مرسته وکړه چي زما په شان ئې لنګوټې تړلي وې.

٢ - و عن عبادة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ عليکم بالعمائم فانها سيماء الملئکة و ارخولها خلف ظهورکم[3].

ژباړه: لنګوټه پر ځان لازمه کړئ ځکه چي دا د ملائکو علامه ده او د (لنګوټې) شمله د شا طرف ته ايله کړئ.

د دې روايتو څخه دا څرګنده سوه چي د علامو څخه مراد لنګوټې دي.

---

[1] روح المعاني: څلرم ټوک -٣٥٦ مخ.

[2] کنزالعمال: حديث نمبر: ٤١١٤١.

[3] رواه البيهقی فی شعب الايمان، مشکوة: دوهم ټوک – ٣٧٧ مخ.

# د صحابه کرامو له نظره د علامو تفسير (بيان)

همدارنګه د صحابه کرامو څخه هم د علامو په باره کي تفسير (بيان) سوی دئ، لکه رئيس المفسرين حضرت عبدالله بن عباس ﵄ فرمايي:

سيماء الملئكة يوم بدر عمائم بيض قد ارسلوها فی ظهورها و يوم حنين عمائم حمر[1].

ژباړه: د بدر په ورځ د ملائکو علامې سپيني لنګوټې وې، چي هغوی د شا پر طرف شملې ايله کړي وې، او د حنين په ورځ ئې سرې لنګوټې وې.

عن عروه بن الزبير كانت عمامة الزبير يوم بدر صفراء فنزلت الملئكة كذلک ... و التطبيق بين الروايتين بان جبرئيل كانت عمامة صفراء و غيره كانت عمامة بيضاء[2].

ژباړه: له حضرت عروة بن زبير ﵁ څخه روايت دئ چي زبير ﵁ د بدر په ورځ ژړه لنګوټه تړلې وه او ملائکو هم د هغه د لنګوټې مطابق راکښته سوې (يعني د ژړو لنګوټو سره) اوس د دې دواړو رواياتو په منځ کي مطابقت دا دئ چي حضرت جبرئيل ﵇ د حضرت زبير ﵁ د لنګوټې په شان په ژړه لنګوټه کي راکښته سو او نورو ملائکو سپيني لنګوټې تړلي وې.

---

[1] روح المعانی: ۴ جلد، ۳۵۶ مخ، و اخرج ابن اسحاق والطبرانی.

[2] الجمل علی الجلالين: اول ټوک – ۶۰ مخ.

د دې آیت مبارک څخه دا مسائل معلومي سوې:

۱ - دا چي مسومین د اکثرو قراوو (د قرائت د علم د علماوو) د قرائت موافق پر صیغه د اسم المفعول تلاوت کېږي او د دې مقصد دا دئ چي ملائکه د الله ﷻ د جانبه علامه لرونکي راغلي دي(1).

د دې څخه ثابته سوه چي لنګوټه د الله تعالی خوښه ده، نو ځکه ئې ملائکي هم پر دغه صورت او شکل را استولې.

۲ - دا چي د مجاهدینو له پاره په حالت د جنګ کي هم لنګوټې تړل په کار دي ځکه دا د مجاهدینو له پاره بهتره جامه ده.

او الله تعالی فرمایي:

قُلۡ إِن كُنتُمۡ تُحِبُّونَ ٱللَّهَ فَٱتَّبِعُونِي يُحۡبِبۡكُمُ ٱللَّهُ وَيَغۡفِرۡ لَكُمۡ ذُنُوبَكُمۡۚ وَٱللَّهُ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ۝٣١ [آل عمران: ۳۱]

ژباړه: ووایه (اې محمده دوی ته) که چیري یاست تاسي چي محبت کوی له الله سره پس متابعت وکړئ زما، چي محبت به وکړي الله له تاسي سره او مغفرت به وکړي تاسي ته ګناهونه ستاسي او الله مغفرت کوونکی، ډېر رحم والا دئ.

تفسیر: محبت یو پټ شی دئ، د چا سره د چا محبت سته او که نسته، کم دئ او که زیات د دې هیڅ پیمانه بغیر له دې څخه نسته چي د حالاتو او معاملو څخه اندازه واخیستل سي او کومي نخښي او علامې چي وي په هغه پېژندل کېږي.

نو که په دنیا کي نن یو سړی د خپل حقیقي مالک د محبت دعوی

---

(1) روح المعانی: ۴ټوک – ۳۵٦مخ.

کوونکی وي نو د ښه او خراب به د حضرت محمد ﷺ په تابعداري سره معلومېږي، کوم سړی چي په خپله دعوه کي زيات رښتينی وي دومره به دی د نبي کريم ﷺ په تابعداري کي زيات اهتمام کوونکي وي او د هغه راوړي روڼاوي به د خپلي لاري شمع جوړوي او څومره چي خپل په دعوه کي کمزوری وي دومره به د هغه په تابعداري کي سست او کمزوری ليدل کېږي[1].

او سهل بن عبدالله ويلي دي چي علامه د محبت د الله سره محبت د قرآن سره ده او علامه د محبت د قرآن سره محبت د نبي کريم ﷺ سره ده او علامه د محبت د نبي کريم ﷺ سره محبت دئ د سنت سره د نبي کريم ﷺ[2].

دا رنګه صاحب د روح البيان د دې آيات په تفسير کي ليکلي چي کوم کس د الله ﷻ د محبت دعوه کوي او سره د دې بيا مخالفت د سنت د رسول الله ﷺ کوي نو دغه کس بېشکه په خپله دعوه کي درواغجن دئ ځکه کوم کس چي د چا سره محبت لري نو د هغه د خپل محبوب د ټولو متعلقينو او علامو سره محبت لري، مثلاً د هغه د مريانو او غلامانو او کور او دېوال او محلې او داسي نورو سره مينه لري ځکه دا د عشق علامه ده[3].

له پورتني بيان څخه دا خبره څرګنده سوه چي محبت د الله او د رسول د الله په متابعت د سنت طريقې د نبي کريم ﷺ سره حاصلېږي،

---

[1] معارف القرآن: اول جلد، ۱۲۵ مخ.
[2] تفسير المنير: دوهم جلد، ۲۲۵ مخ.
[3] روح البيان: دوهم جلد، ۲۳ مخ.

او له دې څخه دا خبره هم روښانه سوه چې لنګوټه د الله ﷻ خوښه او د خاتم النبيين حضرت محمد ﷺ ښايسته سنت دئ ځکه چې عليه السلام دا د مسلمانانو او کافرانو په منځ کي فرق بللې ده او د مسلمانانو له پاره ئې تاج نومولې ده.

نو د هر کس له پاره دا په کار ده چې د نبي کريم ﷺ د سنت طريقې متابعت (پيروي) وکړي بې له بېري او شرم څخه هغه پر ځان عملي کړي ځکه چې محبت يو داسي شی دئ چې کله په زړه کي ځای ونيسي نو محبوب لره پر هر شي غلبه ورکوي، نه بيا د ننګ او ناموس پروا لري او نه د شرم او پېغور پروا لري، الله ﷻ دي په خپله مهرباني او د خپل محبوب په برکت سره خپل او د خپل رسول محبت رانصيب کړي.

# دریمه برخه

## لنګوټه د احادیثو په رڼا کي

تر قرآن پاک وروسته دوهمه مرتبه د نبي کريم ﷺ د مبارک خولې څخه د وتلي احاديثو ده. د دې وجي څخه په دې برخه کي خپله موضوع د حديثونو په زېور باندي ښايسته کوم چي د لنګوټې مرتبه د افضل الرسل د حديثونو څخه هم ثابته سي او د نبي کريم ﷺ د سنتو عاشق ته دا څرګنده سي چي واقعي لنګوټه د نبي ﷺ سنت ده نو راسئ او وګورئ د نبي ﷺ حديثونه په دې برخه کي چي د زړه کور مو په روښانه سي.

## د لنګوټې په باره کي تاکيد

عن ابن عمر قال قال رسول الله ﷺ عليكم بالعمائم فانها سيماء الملائكة و ارخوها خلف ظهوركم[1].

ژباړه: حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه د نبي کريم ﷺ څخه روايت کوي چي نبي کريم ﷺ وفرمايل: چي لنګوټې تړل پر ځان لازم کړئ او

[1] غذالالباب: دوهم جلد، ۱۹۱ مخ.

شملې ئې د شا طرف ته ایله کړئ ځکه دا (لنګوټه) د فرشتو علامه ده.

عن عبادة قال قال رسول الله ﷺ علیکم بالعمائم فانها سیماء الملائکة وارخوالها خلف ظهورکم[1].

ژباړه: حضرت عبادة رضي الله عنه بن صامت د نبي کریم ﷺ څخه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل چې: لنګوټې (تړل) پر ځان لازم کړئ ځکه دا د فرشتو علامې دي او شملې ئې د شا طرف ته ایله کړئ.

فایده: د دې حدیث مبارک څخه دا څرګنده سوه چې لنګوټه تړل نبي کریم ﷺ ته زیات محبوب او خوښ وه ځکه چې نبي کریم ﷺ د لنګوټې په تړلو حکم کړی دئ او لنګوټه تړل ئې د فرشتو علامې نومولې دي.

## د نبي کریم ﷺ پر لنګوټه دوام

عن الحسن قال کان رسول الله ﷺ یعتم و یرخی عمامة بین کتفیه[2].

ژباړه: د حضرت حسن رضي الله عنه څخه روایت دئ دوی وایي چې نبي کریم ﷺ به همېشه لنګوټه تړله او د خپلي لنګوټې (شریفي) شمله به ئې د اوږو په منځ کي را ایله کوله.

[1] رواه البیهقی فی شعب الایمان، مشکوة: دوهم جلد، ص ۳۷۷.

[2] الطبقات الکبری: اول جلد، ۴۵٦ مخ، [باب ذکر لباس رسول ﷺ].

## د فتحي مکې په ورځ د نبي کريم ﷺ لنګوټه

عن جابر قال دخل رسول الله ﷺ مكة يوم الفتح و عليه عمامة سوداء[1].

ژباړه: د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ دوی فرمايي چې نبي عليه السلام د فتح مکې په ورځ په داسې حالت کې مکې (مکرمې) ته داخل سو چې توره لنګوټه ئې (پر سر) وه.

د دې حديث مبارک څخه دا څرګنده سوه چې نبي کريم ﷺ په خاصو ځايونو کې ښه او ښايسته جامې اغوستلې لکه څرنګه چې نبي کريم ﷺ د فتح مکې په ورځ توره لنګوټه تړلې وه.

## لمونځ کول د لنګوټې سره

عن جابر بن عبد الله قال قال رسول الله ﷺ ركعتان بعمامة خير من سبعين ركعة بلا عمامة[2].

ژباړه: هغه دوه رکعته لمونځ چې د لنګوټې سره ادا سي هغه بهتر دئ تر اويا رکعته (لمونځ) بې لنګوټې.

عن ابن عمر قال قال رسول الله ﷺ صلوة تطوع او فريضة بعمامة تعدل خمسا و عشرين صلوة و جمعة بعمامة تعدل سبعين جمعة بلا

---

[1] سنن ابي داود: دوهم جلد، ۵٦٣ مخ [باب فی العمائم].

[2] کنزالعمال، حديث نمبر: ۴۱۱۳۸.

عمامة[1].

ژباړه: هغه فرض او نفل لمونځ چي د لنګوټې سره (یعني لنګوټه تړل سوې وي ادا سي) دا د پنځه ویشت لمونځونو سره برابر دئ (چي بې له لنګوټې وي). او جمعه سره د لنګوټې دا برابر دئ د دواویاوو جمعو سره بې له لنګوټې.

فایده: په پورتنیو حدیثونو کي دا بیان سول چي لمونځ کول سره د لنګوټې دا ډېر بهتر دئ، تر هغه لمانځه چي بې له لنګوټې وي او دا خو ثرګنده خبره ده چي تر ایمان وروسته دوهمه مرتبه د لمانځه ده او په ورځ د قیامت هم لومړی پوښتنه د لمانځه کېږي، الغرض دا چي لمونځ داسي لوی دولت دئ چي په ارزښت به ئې هغه ثوک پوهېږي چي خوند ئې ثکلی وي نو له همدې کبله په کار دا ده چي لمونځ د سنت طریقې سره برابر ادا سي او لنګوټه وتړل سي چي دا ثوابونه تر لاسه سي.

## د مومن او مشرک په منځ کي فرق

عن رکانة ﵁ قال قال رسول الله ﷺ العمامة علی القلنسوة فصل ما بیننا و بین المشرکین یعطی یوم القیمة بکل کورة یدورها علی راسه نورا[2].

ژباړه: د حضرت رکانة ﵁ ثخه روایت دئ چي نبي ﵇ فرمایي چي پر رخچینه باندي لنګوټه تړل زموږ او د مشرکینو په منځ کي جلا

---

[1] کنزالعمال، حدیث نمبر: ۴۱۱۳۹.

[2] جامع الحدیث: ۱۴ جلد، ۳۶۸ مخ [باب المحلی من العین].

کوونکې علامه ده (څکه هغوی به رخچينه نه پر سر کوله) او د لنګوټې پر هر وله چي پر سر راګرځېدلې وي د قيامت په ورځ نور (ورکول کېږي).

له دې حديث مبارک څخه دا څرګنده سوه چي د لنګوټې هر ول ځانته بېل بېل نور دئ نو لنګوټه نور پر نور سوه.

عن رکانة رضي الله عنه عن النبي قال فرق ما بيننا و بين المشرکين العمائم على القلانس[1].

ژباړه: د حضرت رکانة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نبي عليه السلام وفرمايل چي زموږ او مشرکينو په منځ کي فرق (جلا کوونکې نخښه) پر رخچينه لنګوټه تړل دي.

## لنګوټه د اسلام علامه ده

عن عبد الاعلى بن عدى ان رسول الله صلى الله عليه وسلم دعا على بن ابى طالب يوم غديرخم فعممه وارخى عذبه العمامة من خلفه ثم قال هكذ فاعتموا فان العمامة سيماء الاسلام و هى الحاجز بين المسلمين والمشرکين[2].

ژباړه: د عبد الاعلى بن عدى څخه روايت دئ چي نبي عليه السلام علي بن ابي طالب د غديرخم په ورځ راوغوښتی نو لنګوټه ئې وروتړل او د هغه شمله ئې د شا و طرف ته ور ايله کړه. د دې څخه وروسته ئې وفرمايل چي دا رنګه لنګوټه تړي، بېشکه چي لنګوټه د اسلام علامه ده

---

[1] سنن ابی داود: دوهم جلد، ص ۵۶۳.

[2] عمدة القاري: ۲۱ جلد، ۳۰۷ مخ.

او د مسلمانانو او کافرانو په منځ کي فرق (جلا کوونکې نخښه) ده.

په دې حديث مبارک کي د لنګوټې پر تړلو باندي حکم سوی دئ او له د دې وجه ئې دا بيان کړې ده چي دا د اسلام علامه ده.

## لنګوټه د ملايکو علامې دي

عن عائشة رضي الله عنها قالت رايت رجلا يوم الخندق على صورة دحية ابن خليفة الكلبى على دابة يناجى رسول الله ﷺ و على راسه عمامة سدلها عليه فسالت رسول الله ﷺ قال فان ذلک جبريل[1].

ژباړه: حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چي د خندق په ورځ ما يو سړی وليدی چي پر حيوان باندي سپور وو او په شکل د حضرت دحية الکلبي سره مشابه وو، د نبي عليه السلام سره ئې پټې خبري کولې او د هغه پر سر لنګوټه تړلې وه وروسته ما د نبي کريم عليه السلام څخه پوښتنه وکړه چي دا څوک وو نبي عليه السلام وفرمايل چي هغه جبرئيل عليه السلام وو.

او همدارنګه حضرت حذيفه رضي الله عنه چي کله عليه السلام د خندق د غزا په ورځ کي د کافرانو د حالاتو د معلومولو له پاره وليږی نو حضرت حذيفة رضي الله عنه په خپله هغه قصه بيانوي چي په هغه قصه کي داسي راځي چي کله زه د لاري نيمي او يا د دې و نژدې ته ورسېدم ما شل يا دی ته نژدې کسان پر اسانو سپاره وليدل چي لنګوټې ئې پر سرو تړلي وې هغو خلکو ما ته وويل چي خپل حضرت ته ولاړ سه او ورته ووايه چي

---

[1] مستدرک: ۴ جلد، ۲۱۴ مخ [کتاب اللباس].

الله تعالی ستاسي له طرفه کافي سو[1].

دا په اتفاق سره د ټولو علماوو ثابته ده چي دغه شل کسان فرشتې وې، او فرشتې د الله تعالی نوراني او له ګناه څخه پاک بندګان دي. نو د هغو شکل جوړول هم و الله ته خوښ دي خصوصاً بیا لنګوټه تړل دا د دې وجي څخه چي نبي کریم ﷺ د هغوی په تابعداري حکم کړی دئ لکه چي فرمایي:

علیکم بالعمائم فانها سیماء الملائکة وارخولها خلف ظهورکم[2].

ژباړه: لنګوټې تړل پر تاسي باندي ضرور وبولي (یا کړي) ځکه چي د لنګوټې (تړل) د ملائکو علامه ده او شملې ئې د شا طرف ته ایله کړئ.

## د لنګوټې پرېښوونکی د الله ﷻ د رحمت له نظره محروم دئ

ابو نعیم عن ابن عباس قال قال رسول الله ﷺ لا ینظر الله الی قوم لا یجعلون عمائمهم تحت ردائهم یعنی فی الصلوة[3].

ژباړه: الله تعالی هغه قوم ته د رحمت په نظر نه ګوري کوم چي په لمانځه کي تر خپلو پټوانو لاندي لنګوټه نه تړي (یعني چي لمانځه کي لنګوټه نه تړي).

---

[1] حیات صحابه: اول جلد، ۳۱۳ مخ [د الحجة التامة فی لبس العمامة ۱۳ مخ په حواله].

[2] مشکوة: دوهم جلد، ۳۷۷ مخ.

[3] کنز العمال، حدیث نمبر: ۲۰۰۳۳.

# لنګوټه تړل حلم (بردباري) زياتوي

عن عبدالله بن عباس قال قال رسول الله ﷺ اعتموا تزدادوا حلما[1].

ژباړه: د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نبي کريم ﷺ وفرمايل: چي لنګوټه تړي (ځکه لنګوټه) حلم (بردباري) زياتوي.

له دې حديثه دا څرګنده سوه چي لنګوټه تړل حلم زياتوي او حلم (بردباري) هغه قيمتي او بېش قيمته خزانه ده که سړی د دې په پيدا کولو کي هر څومره مصارف او ستړياوي وګالي بيا هم نه پيدا کېږي خو خوږ نبي ﷺ د دې له پاره داسي يو نسخه تجويز کړه که هر امتي عمل باندي وکړي او پر ځان ئې عملي کړي نو د دې ګټه به ورته څرګنده سي.

## لنګوټه تړل پر ښځو باندي د برترۍ علامه ده

الله تعالی جل جلاله فرمايي:

ٱلرِّجَالُ قَوَّٰمُونَ عَلَى ٱلنِّسَآءِ بِمَا فَضَّلَ ٱللَّهُ بَعۡضَهُمۡ عَلَىٰ بَعۡضٖ

[النساء: ۳۴]

ژباړه: سړي حاکمان (مقرر سوي) دي پر ښځو باندي په سبب د دې چي فضيلت (لويي) ورکړې ده الله ځينو د دوی ته پر ځينو نورو باندي.

---

(1) مستدرک: ۴ جلد، ص ۲۱۴ [کتاب اللباس].

فایده: هغه فضیلتونه چي الله جَلّ جَلالُه نارینه وو ته پر زنانه وو ورکړي دي هغه ډېر دي چي د مفسرینو (د تفسیر عالمانو) بیان کړي دي البته یو د هغو له جملې څخه دا هم دئ چي صاحب د تفسیر روح البیان بیان کړی دئ.

و هم اصحاب اللحی و العمائم[1].

ژباړه: دوی (سړي) د ږیري او لنګوټې والا دي (او ښځه د دې څخه محرومه ده). نو لنګوټه د سړیتوب علامه ده او د ښځي او سړي په منځ کي بېلوونکې اندازه ده.

## لنګوټه د مسلمان له پاره تاج دئ

عن انس بن مالک رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم العمائم تیجان العرب فاذا وضعوا العمائم وضعوا عزهم[2].

ژباړه: د حضرت انس بن مالک رضی الله عنه څخه روایت دئ چي نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایي چي لنګوټه د عربو له پاره تاج دئ کله چي دوی لنګوټه پرېږدي نو عزت ئې ختم سو.

د دې حدیث مبارک څخه معلومه سوه چي لنګوټه د عزت او مرتبې شی دئ او د کوم کس چي پر سر وي هغه خاوند د عزت دئ.

عن امیر المؤمنین علی بن ابي طالب کرم الله تعالی وجهه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم فان العمائم تیجان المسلمین[3].

---

[1] تفسیر روح البیان: اول جلد، ص ۱۷۷.

[2] مسند الفردوس، کنزل العمال: ۱۵ جلد، ص ۳۰۵ [فصل فی العمائم].

[3] کنزل العمال، حدیث نمبر: ۴۱۱۴۳، ۱۵ جلد، ۳۰۵ مخ.

ژباړه: د حضرت امیرالمؤمنین علی بن ابي طالب څخه روایت دئ چي نبي کریم ﷺ فرمایي: چي بېشکه لنګوټې د مسلمانانو له پاره تاج دي.

له دې حدیث مبارک څخه معلومه سوه چي لنګوټه یوازي د عربو له پاره تاج نه دي بلکي د ټولو مسلمانانو له پاره تاج دي نو په کار دا دي چي ټول مسلمانان دا سنت پر ځای کړي او د دې قدر وکړي.

## ضروري خبرتیا

لنګوټه تړل د نبي کریم ﷺ مزینه او ښایسته سنت دئ همدا رنګه نبي کریم ﷺ د همېش له پاره تړلې ده او نور مسلمانان ئې په دې امر کړي وه، خو په تاسف سره باید وویل سي چي ځیني نیمګړي مطالعه والا عوام د هغه حدیثونو په باره کي چي د لنګوټې اړوند راغلي دي پر هغو د موضوعي حدیثونو داغ لګوي. خو د دې څخه علماء کرام جوابونه ورکوي.

علامه عبدالرؤف مناوي وایي چي: د لنګوټې اړوند چي کوم حدیثونه راغلي دي، پر هغو د موضوعي حدیثونو ګومان کول دا پر ناخبرتیا بناء دي او تحقیق نه دئ، البته دا حدیثونه ځیني ضعیف دي خو دا قاعده ده چي ضعیف حدیث د کثرة طرق (د ډېرو طریقو) په وجه سره قوي کېږي[1].

---

[1] و زعم وضع اکثرها تساهل ... و اشتداد ضعف کثیر منها بجبرة کثرة طرقها [شرح شمائل ترمذي: ۲۰۳ مخ، و حاشیة اعانة الطالبین: دوهم ټوک – ۹۵ مخ].

او همدارنګه ملا علي قاري وايي: د نبي کريم ﷺ د لنګوټې ترړل په ډېرو آثارو او اخبارو سره ثابت سوي دي. او نژدې ده چي دا دئ متواتر فی المعنی سي او د لنګوټې اړوند چي کوم حديثونه که څه هم ضعيف دي خو په ډېرو طريقو را رسېدلي دي، دا قوي کوي، بلکي و مرتبې ته د حسن او صحيح ئې رسوي[1].



[1] انه ثبت بالاخبار و الاثار انه تعميم بالعمامة مما كاد ان يكون متواتر فی المعنی ... يحصل من مجموعها قوة ترقيها الی مرتبته الحسن بل الصحة [مرقات بحواله عمامه کی مسائل اور فضائل: ص ٦٢].

# ځلرمه برخه

## لنګوټه د نبي کریم ﷺ او نورو انبیاوو سنت دئ

الله تعالی چي له کوم وخته دا دنیا پیدا کړې ده نو په ټولو مخلوقاتو کي ئې انسان ته لوړ او اوچت مقام ورکړی دئ، د عقل په زېور باندي ئې ښایسته کړی دئ، د رسالت او پیغمبرۍ تاج ئې د ده پر سر ایښی دئ او په ټولو انسانانو کي ئې بیا پیغمبرانو ته لویه مرتبه او مقام ورکړی دئ او هغوی د خپلو فرامینو او د الله تعالی د ارشاداتو په ذریعه د الله تعالی د بندګانو رهنمایي او تربیت کوی. له دې وجي ځخه په هر اهمه موضوع باندي د دوی ارشادات احوال په کتابونو کي موجود دي نو د لنګوټې اړونده چي کوم احوال دي هغه په دې برخه کي بیانوم.

مفسرینو (د تفسیر عالمانو) د ځینو نبیانو لنګوټه په ښکاره ډول بیان کړې ده.

الله تعالی فرمایي:

وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ ءَايَةَ مُلْكِهِۦٓ أَن يَأْتِيَكُمُ ٱلتَّابُوتُ فِيهِ سَكِينَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ وَبَقِيَّةٌ مِّمَّا تَرَكَ ءَالُ مُوسَىٰ وَءَالُ هَـٰرُونَ تَحْمِلُهُ

ٱلۡمَلَـٰٓئِكَةُۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَةٗ لَّكُمۡ إِن كُنتُم مُّؤۡمِنِينَ ﴿٢٤٨﴾ [بقره: ۲۴۸]

ژباړه: او وويل دوی ته نبي د دوی چي بېشکه علامه د پاچهۍ د ده (د طالوت) دا ده چي رابه سي تاسي ته (يو) صندوق (چي وي به) په هغه کي آرام د زړه له (طرفه د) رب ستاسي او باقي پاته سوي له هغو شيانو چي پرې ايښي وو اولادې د موسی عليه السلام او اولادې د هارون عليه السلام حال دا چي بار کړي به وي هغه (صندوق) پرښتو بېشکه چي په دې (راتلو د دې صندوق) کي خامخا علامه ده (په پاچهي د طالوت) تاسي ته که چيري ياست تاسي مومنان.

## د حضرت هارون عليه السلام لنګوټه

د دې آيات مبارک په تفسير کي علامه سيوطي رحمة الله عليه ليکي چي هغه پاته ميراث د حضرت موسی عليه السلام چوټي او لکړه ده او د حضرت هارون عليه السلام لنګوټه او يو قفيز وو[1].

## د حضرت عيسی عليه السلام لنګوټه

او همدارنګه په تفسير قرطبي کي د حضرت عيسی عليه السلام اړوند واقعه چي کوم ليکي چي يهودو د حضرت عيسی عليه السلام د قتل اراده وکړه نو د ده حواريون يو ځای ته جمع سول حضرت عيسی عليه السلام هم د دوی

---

[1] تفسير جلالين: اول ټوک – ۳۸ مخ.

خوا ته تشریف راوړی ابلیس د یهودو و هغو خلکو ته کوم چې د حضرت عیسی علیه السلام د قتل له پاره تیار ولاړ وه د حضرت عیسی علیه السلام پته وروښودله او څلورو زرو کسانو پر دې ځای شاوخوا محاصره واچوله حضرت عیسی علیه السلام خپلو حواریونو ته وفرمایل چې: په تاسي کي کوم سړی دې ته تیار دئ چې دباندي ووزي او ووژل سي او بیا په جنت کي زما سره وي په دوی کي یو نفر د دغه غرض له پاره ځان مخته کړ، نو حضرت عیسی علیه السلام هغه ته خپل قمیص او لنګوټه ورکړه او بیا پر دغه سړي د ده مشابهت واچول سو او کله چې هغه دباندي ووتی نو یهودو هغه ونیوی او په دار ئې کړ او حضرت عیسی علیه السلام اسمانو ته پورته کړه سو[1].

د دې پورتني بیان څخه دا څرګنده سوه چې د نبي علیه السلام څخه ماسوا لنګوټه تړل د نورو نبیانو هم سنت وو دا بېله خبره ده چې په تفسیرونو کي د ځینو لنګوټه بیان سوې ده په ښکاره ډول سره لکه د هارون علیه السلام او حضرت عیسی علیه السلام او د ځینو دا نه ده ذکر سوې[2].

## لنګوټه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم سنت ده

د نبي علیه السلام د لنګوټې په باره کي ډېر حدیثونه راغلي دي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به خپله هم لنګوټه تړلې وه او نورو ته ئې هم د دې ترغیب ورکړی وو چې د دې بیان په دریمه برخه کې تېر سو.

---

[1] قرطبي، د معارف القرآن دوهم ټوک ۱۰ صفحې، شپږمې پارې په حواله.

[2] الحجة التامه فی لبس العمامة: ۱۷ مخ.

## لنګوټه تړل همېشنی سنت دئ

لنګوټه تړل صرف سنت نه دئ بلکي همېشنی سنت دئ. یعني په ژوند کي په یوه او دوه واره تړلو سره سنت نه ادا کېږي، بلکي ټول ژوند لنګوټه تړل سنت دي.

ځکه امام بخاري په کتاب اللباس کي یو باب ایږدي چي د هغه عنوان دئ (باب العمائم) یعني دا باب دئ د لنګوټې په بحث کي هغه تر دې باب لاندي یو حدیث بیانوي هغه دا دئ:

اخبرني سالم عن ابیه یعني عبدالله بن عمر عن النبی ﷺ قال لا یلبس المحرم القمیص والا العمامة و الا لسراویل والالبرانس[1].

ژباړه: ما ته خبر راکړ سالم له خپل پلار څخه یعني عبدالله بن عمر رضي الله عنه د نبي ﷺ څخه روایت کوي چي نبي ﷺ وفرمایل: څوک چي د حج احرام وتړي د هغه له پاره قمیص، لنګوټه، پرتوګ او رخچینه اغوستل جایز نه دي.

اوس پوښتنه پیدا کېږي چي امام بخاري رحمة الله علیه کوم عنوان ایښی دئ د هغه څخه دا ثابتول غواړي چي لنګوټه تړل د نبي ﷺ سنت دئ او تر عنوان لاندي ئې چي کوم حدیث بیان کړی دئ په هغه سره د لنګوټې د سنت ثبوت نه کېږي، خو علماء کرام د دې پوښتني په جواب کي وایي چي د امام بخاري رحمة الله علیه مقصد دا دئ چي لنګوټه تړل همېشنی سنت دئ هغه دا رنګه چي په خاص حالت یعني د احرام نه غیر پاته په ټولو

---

[1] صحیح البخاري: دوهم جلد، ۸٦۳ مخ.

حالاتو کي د لنګوټې تړل سنت دي او دې ته همېشنی سنت وايي. نو دا سنت په يوه او دوه واره سره نه ادا کېږي بلکي ټول عمر تړل ئې ضروري دي[1]، لکه مولانا ذکريا رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ چي فرمايي: لنګوټه تړل سنت مستمره (همېشنی سنت) دئ[2].



[1] الحجه التامه فی لبس العمامة: ۱۸ مخ.

[2] خصائل نبوي: ۱۱۵ مخ.

# پنځمه برخه

## د صحابه کرامو او پخوانيو صالحانو او بزرګانو د لنګوټې تړلو بيان

پر دې د ټول امت اتفاق دئ که د ټول امت وليان او عالمان را جمع سي نو د يو ادنی صحابي مرتبې ته به ونه رسېږي او تر دې چې نبي عليه السلام په يوه حديث مبارک کي فرمايي: که څوک د احد د غره هومره زر د الله په لار کي خرڅ کړي نو د صحابي د يوې خرما صدقې ته به ونه رسېږي. نو د اصحابو رضي الله عنهم هر عمل او عادت د دې وړ دئ چې څوک ئې د ځان له پاره غوره کړي او تابعداري ئې وکړي، ولې به نه وي چې الله جل جلاله د خپل نازولي او محبوب رسول ﷺ د ملګرتيا له پاره دغه ډله غوره او چاڼ کړې ده.

## صحابه کرامو رضي الله عنهم لنګوټه تړل

عن ابي جعفر الانصاری قال رايت علیؓ علی عمامة سوداء يوم قتل عثمان.

ژباړه: د ابي جعفر الانصاري رضي الله عنه څخه روايت دئ چې ما وليده د

حضرت علي ﷛ سره توره لنګوټه (چي تړلې وه) په هغه ورځ چي حضرت عثمان ﷛ شهيد سو[1].

## د عبدالله بن عمر ﷛ د لنګوټې بخشش (تحفه) کول

عبدالله بن دينار وايي چي د مکې مکرمې په لاره کي د يو صحرايي سړي ملاقات د عبدالله بن عمر ﷛ سره وسو. عبدالله بن عمر ﷛ سلام پر ووايه او هغه ئې پر خپل خره سپور کړ او خپل د سر لنګوټه ئې هغه ته پر طريقه د هديې (بخښې) ورکړه. ابن دينار ﷬ وايي چي موږ عبدالله بن عمر ته وويل چي الله دي تا ته د خير بدله درکړي. دا صحرايي خلک په لږ تحفه سره خوشحالېږي. حضرت عبدالله ابن عمر ﷛ وويل چي د دې سړي پلار زما د پلار دوست وو او ما د رسول الله ﷺ دا فرمان اورېدلی دئ چي په نېکيو کي يوه لويه نېکي دا ده چي سړی د خپل پلار د دوست سره ښه سلوک وکړي[2].

## ما ته نبي ﷷ لنګوټه راوتړل

حدثنا شيخ من اهل المدينة قال سمعت عبد الرحمن بن عوف ﷛

---

[1] مصنف ابن ابي شيبه: اتم جلد، ۲۳۴ مخ.

[2] عن عبدالله بن دينار عن عبدالله بن عمر ﷛ ان رجلا من الاعراب لقيته بطريق مكة فسلم عليه عبدالله بن عمر و حمله على حمار كان يركبه و اعطاه عمامة كانت على راسه قال ابن دينار فقلنا له اصلحک الله انهم الاعراب ... [مسلم: دوهم جلد، ۳۱۴ مخ، باب فضل صلة اصدقاء الاب].

يقول عمنني رسول الله ﷺ فسدلها من بين يدی و من خلفی[1].

ژباړه: د مديني يو شيخ وايي چي ما د عبدالرحمن بن عوف څخه دا واورېده چي ما ته نبي عليه السلام لنګوټه راوتړل (نو نبي عليه السلام يوه شمله) د مخ طرف ته پرېښوول (او يوه) ئې د شا طرف ته پرېښوول.

**فايده:**

د دې حديث څخه د لنګوټې اهميت څرګند سو، چي لنګوټه غټ اهميت لري ځکه نبي کريم ﷺ لنګوټه حضرت علي رضي الله عنه او عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه ته په خپله تړلې وه او کله چي به نبي کريم ﷺ د يو ځای له پاره حاکم ټاکی او استوی به ئې نو لنګوټه به ئې ورتړل[2].

## د دستاربندۍ حقيقت

د دې حديث د عبدالرحمن بن عوف لاندې د سنن ابو داود محشي ليکي، چي زما په اند دا حديث دليل له پاره د دستاربندۍ دئ[3].

او مولانا حسين احمد مدني صاحب رحمة الله عليه د دستاربندۍ اړوند ليکي، چي: په پخوانۍ زمانه کي د دې کار د ښکاره کولو له پاره چي طالب العلم نور درسي کتابونه ولوستل او په علومو او فنونو فقهه او

(1) ابو داود: دوهم جلد، ۵۶۳ مخ.

(2) عن عبدالله بن بسر قال بعث رسول الله ﷺ عليا الی خيبر فعممه بعمامة سوداء ثم ارسلها من ورائه او قال علی کتفه، رواه فی الکبير و اسناده حسن: الحاوی للفتاوی: اول ټوک – ۴۴۷ مخ.

(3) هذا عندی اصل فی لباس الخرقه حاشية ابی داود: دوهم جلد، ۵۶۳ مخ.

حدیث کي ماهر سو او دې درجې ته ورسېدی چي د هغه فتوی د وثوق قابل شمار سي او د هغه ښوونه او تدریس د اطمینان وړ وګرځي. دوې لاري په کار واچول سوې: یو سند (شهادنامه) ورکول چي په هغه کي به استاذانو د خپلو شاګردانو د کتابونو ویل او د هغه علمي او عملي صلاحیت او خپل اجازت په ډاګه کاوه او دوهمه طریقه به د دستاربندۍ او جامې ورکولو وه په لویه اجتماع کي به استاذانو د شاګردانو پر سر باندي په خپل لاس لنګوټه ورتړل په دې دوهمه طریقه سره به د خاصو او عامو په منځ کي د شاګرد مشهورتیا کېدل په خلاف د سند (شهادت نامې) چي په هغه پوهېدل او لوستل یوازي د عالمانو کار وو. د دارالعلوم دیوبند د جوړېدو څخه وروسته د دستاربندۍ طریقه جاري سوه، دوهم او دریم کال به یوه لویه جلسه کېدله او په دې طریقه سره د دارالعلوم مشهورتیا ډېر زیاته سول او د عربي تعلیم او دیني علومو د حاصلولو جذبه په خلګو کي په لویه پیمانه پیدا سوه[1].

## پیر خپل مرید ته هم لنګوټه ور تړي

د دستاربندۍ طریقه یوازي په فارغ التحصیل طالبانو کي جاري نه ده بلکي پیر هم خپل مرید ته د خلیفه کېدلو په وخت کي لنګوټه ورتړي، لکه څرنګه چي مولانا فقیرالله صاحب جلال آبادي چي چیري د قادري طریقې دوه سندونه بیان کړي د هغه څخه وروسته دا بیانوي چي

---

[1] نقش حیات: دوهم جلد، ۱۴۴مخ.

ما ته دا دوه سندونه د لنګوټې د را تړلو په وجه را رسېدلي دي[1].

## د حضرت زبیر ﷛ لنګوټه

حضرت زبیر ﷛ وايي چې زه يو وخت د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر سوم او د نبي کريم ﷺ د مخ و طرف ته ناست وم چې نبي ﷺ زما د لنګوټې وروستی اړخ ونيوی او وې فرمايل: اې زبيره! زه د الله ﷻ قاصد يم ستاسي طرف ته په خاص ډول باندي او د ټولو خلګو و طرف ته په عام ډول باندي[2].

وړاندي چې څه وويل سول له هغو څخه دا خبره څرګنده سوې ده چې لنګوټه تړل د اصحابو هم عادت وو خو دا خبره د يادوني وړ ده چې دلته د څو اصحابو د لنګوټو بيان راغلی دئ، د دې مطلب دا نه دئ چې يوازي دغو کسانو لنګوټه تړله بلکي صحابه کرامو ټولو لنګوټې تړلې[3].

## مخکنيو بزرګانو او مجتهدينو هم لنګوټه په اهتمام سره تړلې ده

امام مالک ﷫ چې به کله لنګوټه تړله نو په هغه کې به ئې يو ول تر زني لاندي پرېښودی (چې دې ته په اصطلاح کې زني بند وايي)

---

[1] و هذان السندان سلسلان بلبس الخرقة. قطب الارشاد: ۵۴۵ مخ.
[2] فضائل صدقات: ۹۱ مخ.
[3] مصنف ابن ابي شيبه: اتم جلد، ۲۳۳ مخ.

او شمله به ئې د دواړو اوږو په منځ کي ایله کړه[1].

همدارنګه حضرت عبیدالله رحمة الله علیه فرمایي چي ما حضرت قاسم او حضرت سالم ولیدل چي هغوی د نبي علیه السلام په شان د لنګوټې شملې د دواړو اوږو په منځ کي ایله کړي وې[2].

دا دواړه حضرات د تابعینو څخه دي، حضرت قاسم رحمة الله علیه د حضرت ابوبکر صدیق رحمة الله علیه لمسی دئ او حضرت سالم د حضرت عمر رضي الله عنه لمسی دئ.

## د امام محمد صاحب رحمة الله علیه لنګوټه

امام محمد صاحب رحمة الله علیه به توره لنګوټه تړله، یوه ورځ یوه ښځه د ده په خدمت کي وړاندي سوه، نو دې ښځې په حیرانتیا سره د امام محمد صاحب رحمة الله علیه مخ ته کتله. ده پوښتنه ځني وکړه چي څه خبره ده (چي په حیرانتیا سره راته ګورې)؟ دې په جواب کي وویل چي تر توري لنګوټې لاندي پر سپین مخ باندي حیرانتیا کوم. نو امام محمد صاحب لنګوټه لیري کړه او د دې څخه وروسته ئې توره لنګوټه نه تړل[3].

---

[1] قال اشهب کان مالک اذا اعتم جعل منها تحت ذقنه و سدل طرفیها بین کتفیه. غذالالباب: ج ۲، ص ۱۹٦.

[2] قال عبیدالله و رایت القاسم و سالما یفعلان ذلک ای یسدلان عما متهایین کتفیها، ترمذي، ج ۲، ص ۳۰۴.

[3] و کان محمد رحمة الله علیه یتعمم بالعمامة السوداء فدخلت علیه یوماً مستورة فبقیت تنظر الی وجهه، و هی متحیرة فقال لها ماشانک فقالت اتعجب من بیاض وجهک تحت سودا عمامتک فوضعها من راسه و لم یتعمه بالعمامة السوداء بعد ذلک، (تبین الحقایق: ج ٦، ص ۲۲۹، باب الخلع).

له دې څخه دا نتيجه واخيستل سوه چې له اصحابو څخه راشروع بيا تر نن پوري ډېرو عالمانو او د امت مشرانو لنګوټه تړلې ده.

## لنګوټه د ساينس په رڼا کې

د رسول اکرم ﷺ په دې مبارک سنت کې که يو طرف ته ډېري ديني فايدې دي خو بل طرف ته په طبي ډول سره که فکر وسي نو دا د صحت او تندرستۍ له پاره هم يو عجيب نسخ ده.

فايدې خو ئې بې شماره دي خو موږ دلته د مثال په ډول څو راوړو:

١ - کوم څوک چې لنګوټه پر سر کوي هغه به د جل (لمبې وهلو sun stroke) له ناروغۍ څخه ژغورلی وي.

٢ - کوم څوک چې لنګوټه پر سر کوي هغه به د دايمي نزلې له ناروغۍ څخه ژغورلی وي، که بالفرض وي هم نو اثر او اغېزه به ئې کمه وي.

٣ -د سر درد له پاره لنګوټه ډېره ګټه کوي، کوم څوک چې لنګوټه پر سر کوي، د هغه د سر درد خطره ډېره لږ وي.

۴ -لنګوټه د دماغي تقويت او حافظې له پاره يو عجيب اثر لري.

۵ - د لنګوټې شمله د شنجۍ (شمزۍ) د هډوکي د درد له پاره ډېره ګټه رسوي.

٦ - د لنګوټې شمله حرام مغز له يخ او ګرمۍ څخه ساتي چې له همدې لاري سړی د سرسام له خطرونو څخه په امن وي.

٧ - د فزيالوجۍ د تحقيق او څېړني مطابق کله چې د کوم انسان

حرام مغز محفوظ وي د هغه د جسم اعصابي نظام او عضلاتي نظام هم سم او منظم وي او دا کار (د حرام مغز ساتنه) د لنګوټې د شملې په واسطه کېدای سي.

۸ - د سپيني لنګوټې له کبله دماغ او دماغي اعصاب د ګرمۍ او لمر له تېزو اثراتو او اغېزو څخه ژغورل کېږي.

۹ - د لنګوټې له کبله انسان په ټولنه کي معزز او بارعب معلومېږي چي دا د انسان پر روحياتو مثبت اثر لري.

۱۰ - د لنګوټې له کبله د انسان زغم او حوصله زياتېږي.

د نفسياتو يو ماهر ډاکټر وايي:

يو پاکستانی ډاکټر عزيزاحمد چي د نفسياتو ماهر دئ هغه وايي:

کله چي زه د نفسياتو په باره کي د لوړو زده کړو له پاره خارجي هيوادونو ته ولاړم هلته د نفسياتي او روحي ناروغيو څخه د حفاظت او ژغورني له پاره د لنګوټې په شان يو جامه کارېدل (پر سر تړل کېده) کله چي ما دا کار وليدی نو فوراً مي وويل چي دا خو لنګوټه ده کوم چي زموږ پيغمبر استعمال کړې او هم ئې د امت له پاره يو سنت کار دئ.

هغو خلکو (د نفسياتو ماهرانو) دا ځکه پر سر کول چي د همدې کبله په انسان کي د مسايلو او مصائبو د برداشت قوت پيدا کېږي او له نورو ډېرو روحي او نفسياتي مرضونو څخه ساتل کېږي[1].

---

[1] سنت نبوي اور جديد ساينس: اول جلد، ۱۵۱ مخ.

# شپږمه برخه

## د نبي کريم ﷺ د لنګوټې اندازه

د نبي ﷺ د لنګوټې د اندازې اړوند يوه متفق روايت په منځ د ټولو علماوو کې نسته خو په دې باره کې مختلف روايتونه راغلي دي.

حافظ ابن حجر رحمة الله عليه وايي چې ما ته د نبي ﷺ د لنګوټې د اوږدوالي په باره کې څه معلومه اندازه نه ده را رسېدلې(1).

## د علامه شهاب الدين ابن حجر هيثمي وينا

علامه شهاب الدين ابن حجر هيثمي وايي چې: ما د نبي ﷺ د لنګوټې د اوږدوالي او پراخوالي په باره کې څه نه دي ليکلي ځرنګه چې ځينو علماء کرامو ويلي دي او طبراني چې کوم اووه ګزه اوږدوالی ويلی دئ او ځينو بيا نورو اووه ګزه اوږدوالی او يو ګز پراخوالی ويلی دئ، د دې څه دليل نسته البته د علامه نووي رحمة الله عليه څخه دا راغلي دي چې د نبي ﷺ يوه کوچنۍ لنګوټه وه چې اووه ګزه او دوهم اوږده وه

(1) قال الحافظ بن حجر رحمة الله عليه لا يحضرني لطول عمامة النبى قدر محدود، [غذالالباب: ج ۲، ص ۱۹۲]

چي دوولس ګزه وه[1].

## د مولانا ذکریا صاحب قول

مولانا ذکریا صاحب رحمة الله علیه وایي چي د علامه جزري رحمة الله علیه په وینا چي ما د سیرت په کتابونو کي په ځانګړي توګه څېړنه وکړه خو د نبي علیه السلام د لنګوټې اندازه ما ته پیدا نه سوه، هو د امام نووي رحمة الله علیه څخه دا رانقل سوي دي چي د نبي علیه السلام دوې لنګوټې وې یوه وړه د شپږو ګزو په اندازه د مناوي د وینا موافق او د اوو ګزو په اندازه د ملا علي قاري رحمة الله علیه د وینا مطابق او دوهم غټه د دوولسو ګزو په اندازه[2].

## د علامه شاه انورشاه کشمیري رحمة الله علیه وینا

د نبي علیه السلام لنګوټه به په ډېرو وختونو کي درې شرعي ګزونه وه او پنځه وخته لمونځونو کي به ئې اووه ګزه وه او د جمعې او اخترونو په



---

[1] و قال شهاب الدین حجر الهیثمي لم اتحرر کما قال بعض الحفاظ فی طول عمامة علیه السلام و عرضها و ما وقع للطبرانی من ان طولها نحو سبعة اذرع فی عرض ذراع و لغیره ان طولها نحو سبعة اذرع فی عرض ذراع لا اصل له لکن نقل عن النوی انه کان له صلی الله علیه وسلم عمامته قصیرة و کانت ستة اذرع و عمامة طویلة و کانت اثنی عشر ذراعا، [المواهب اللدنیة.

[2] خصائل نبوی: ۱۱۵مخ.

وختونو کي به دوولس ګزه وه[1].

د دې څخه دا نتيجه واخيستل سوه چي د نبي ﷺ د لنګوټې اوږدوالی او پراخوالي له پاره څه خاص اندازه نسته، بلکي بېلابېلو وختونو کي ئې د مختلفو اندازو لنګوټې استعمالولې، د کور له پاره ځانګړې، د پنځه وخته لمونځونو له پاره بېله، د جمعې او اخترونو له پاره بېله لنګوټه. مطلب دا چي نه ډېر زياته غټه وه او نه زياته وړه وه، بلکي ميانه (منځګړې) وه او په هر کار کي منځلاريتوب غوره دئ[2].

البته که د يخ او ګرمی له وجي څخه لنګوټه څه غټه سي څه پروا نه لري[3].



---

[1] کانت عمامته ﷺ فی اکثر الاحيان ثلاثة اذرع شرعيه و فی الصلوة الخمس سبعة اذرع و فی الجمع و الاعياد اثنا عشر ذراعاً (عرف الشذی، حاشية الترمذی، ج ۲، ص ۳۰۴، محمود الفتاوی: ج ۴، ص ۲۲۴).

[2] لم تکن عمامة ﷺ کبئرة يؤذی الراس حملها و صغيرة تقصر عن وقاية الراس من نحو حراوبرد بل کانت وسطاً بين ذلک و خيرالامور الاوسط [اعانة الطالبين: ج ۲، ص ۹۵).

[3] فاذا زاد فی کبر العمامة قليلاً لاجل حراوبرد فيسامح فيه، مدخل: ج ۱، ص ۱۸۸.

# اوومه برخه

## د لنګوټو د شملو اړوند بیان

مناسب ښکاري چې د شملې اړوند هم یو بحث ځانګړی سي ځکه شمله هم د لنګوټې یو اهم جز دئ. نو دلته د لنګوټې اړوند درې خبري د وضاحت کولو وړ دي.

1. د شملو تعداد
2. د شملې اندازه
3. د شملې د پرېښودو ځای

## د شملو تعداد

د لنګوټې یوه شمله کښته وي چې هغې ته په عربي (ذوابه) ویل کېږي. او بله پورته وي چې هغې ته په عربي (عذبه) وایي چې په پښتو کي چارخول نومول سوی دئ. خو دا خبره د یادوني وړ ده چې په اصطلاح کي د شریعت په ځینو ځایونو کي یو د بل په نامه نومول سوي دي. د نبي ﷺ د لنګوټې دوې شملې او د یوې شملې د دواړو ثبوت راغلی دئ.

## د دوو شملو ثبوت

عن عمر بن حريث قال كانى انظر الى رسول الله ﷺ على المنبر و عليه عمامة سوداء قد ارخاطر فيها بين كتفيه[1].

ژباړه: د عمر بن حريث رضي الله عنه څخه روايت دئ فرمايي چي ګويا زه ګورم هغه (حالت زما په وړاندي دي) چي نبي عليه السلام پر منبر باندي (ناست وو) او توره لنګوټه د هغوی پر سر وه او دواړه شملې ئې د دواړو اوږو تر منځ پرې ايښي وې.

## د يوې شملې ثبوت

عن عبد الاعلى بن عدى ان رسول الله ﷺ دعا على بن ابي طالب يوم غدير خم فعمه و ارخى عذبة العمامة من خلفه[2].

ژباړه: د عبد الاعلى بن عدى رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نبي عليه السلام حضرت علي رضي الله عنه د غدير خم په ورځ راوغوښتی نو هغه ته ئې لنګوټه ور وتړله او شمله ئې د شا طرف ته ورايله کړه.

عن ابن عمر رضي الله عنه قال كان النبي رضي الله عنه اذا اعتم سدل عمامته بين كتفيه[3].

ژباړه: د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نبي

---

[1] ابو داود: دوهم جلد، ۵٦۳ مخ، غذا الالباب: دوهم جلد، ۱۹۱ مخ.
[2] عمدة القاري: ج ۲۱، ص ۳۰۷.
[3] ترمذي: ج ۲، ص ۳۰۴، كنزل العمال: ج ۷، ص ۴۵.

ﷺ كله لنګوټه تړل نو شمله به ئې د دواړو اوږو تر منځ ايله وه.

له دې څخه دا څرګنده سوه چې د لنګوټې په هکله د دوو شملو او يوې شملې دواړه قسمه احاديث راغلي دي، نو له دې کبله يوه شمله ورکول يا دوې شملې ورکول دواړه صحيح دي[1].

## د شملې اندازه (د څلورو ګوتو په اندازه راغلې ده)

عن ابن عمر قال عمم رسول الله ﷺ ابن عوف بعمامة سوداء كرابيس وارخاها من خلفه قدر اربع اصابع[2].

ژباړه: د عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ فرمايي چې نبي ﷺ (عبدالرحمن) بن عوف ته د تارو توره لنګوټه ور وتړله او شمله ئې د څلورو ګوتو په اندازه د شا (طرف) ته پرېښوول.

## د يوې لوېشتي په اندازه هم راغلې ده

روى ان سيدنا عليا اعتم بعمامة سوداء وارخاها من خلفه شبر[3].

ژباړه: په يوه روايت کي راغلي دي چې حضرت علي رضي الله عنه توره لنګوټه وتړل او شمله ئې د شا طرف ته (يوه) لوېشت ځوړنده کړه.

---

(1) خلاصة الفتاوى: ج ۳، ص ۱۵۳.

(2) عمدة القاري: ج ۲۱، ص ۳۰۷.

(3) غذالالباب: ج ۲، ص ۱۹۱.

## د ګز (شرعي) په اندازه هم راغلې ده

عن عاصم بن محمد عن ابيه قال رايت ابن الزبير اعتم بعمامة سوداء قد ارخاها من خلفه نحوا من زراع[1].

ژباړه: عاصم بن محمد د خپل پلار څخه روايت کړی دئ فرمايي چي ما ابن زبير ﷺ وليدی چي توره لنګوټه ئې تړلې وه او د شا طرف ته د يوه ګز په اندازه ئې (شمله) ايله کړې وه.

ضروري يادونه: د ګز څخه مراد دلته شرعي ګز دئ، چي تقريباً يو نيم فټ يا اتلس انچه کېږي چي په اصطلاح ورته يو لاس وايي[2].

## مفتی به قول

خلاصه د خبري دا ده چي شمله په اندازه د يوې لوېشتي يا تر ناستي تر ځای پوري او يا د ملا تر منځه پوري دا درې سره طريقې دي. خو غوره او مفتی به قول اخرنی دئ چي د ملا تر منځ پوري دئ[3].

## د شملې د پرېښودو ځای

د دې پورتني بيان څخه د شملې د پرېښودو ځای څرګند سو. چي

---

[1] مصنف ابن ابي شيبه: ج ۸، ص ۵.

[2] اوزان شرعيه: ص ۴۸۹.

[3] و يرسل الذيل بين الكتفين الى قدر الشبر او موضع القعود او نصف الظهر و هو متوسط مرضى، [شرح عين العلم: ج ۱، ص ۳۰۵، فتاوی کامليه: ص ۲۶۲].

د مخ طرف ته پر راسته اوږه باندي او د شا طرف ته د دواړو اوږو په منځ کي راوستل ئې جائز دي.

البته د اوږو په منځ کي پرېښودل ئې افضل او مستحب دي[1]. خو پر چپه طرف په را ايله کولو کي د علماوو اختلاف دئ ځيني ئې جائز بولي او ځيني ئې بدعت بولي[2].



---

(1) ندب لبس السواد و ارسال ذنب العمامة بين كتفيه الى وسط الظهر [درالمختار على هامش رد المحتار: ج ٦، ص ٧٥٥].

(2) الوفاء لابن جوزى: ج ٢، ص ٥٦٧.

# اتمه برخه

## د لنګوټې رنګ

لنګوټه تړل د نبي ﷺ د جامو څخه يوه جامه ده نو اړينه ده چې په دې کې د نبي ﷺ د طريقې پيروي وسي او د نبي ﷺ څخه د تور رنګ او سپين رنګ دواړو ثبوت راغلی دئ.

## د تور رنګ ثبوت

عن جابر قال دخل النبى ﷺ مكه يوم الفتح و عليه عمامة سوداء[1].

ژباړه: د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دئ چې نبي ﷺ (د مکې) د فتحې په ورځ مکې (ښار) ته په داسې حال کې داخل سو چې توره لنګوټه ئې تړلې وه.

## د نبي ﷺ پر سر توره لنګوټه وه

عن عمرو بن حريث عن ابيه ان النبي ﷺ خطب الناس و عليه

---

[1] ترمذي: ج ۱، ص ۳۰۴.

عمامة سوداء(1).

ژباړه: حضرت عمرو بن حریث د خپل پلاره روایت کوي چې نبي ﷺ خطبه ویل خلکو ته او د ده (پر سر مبارک) باندې توره لنګوټه وه.

## نبي علیه السلام پر منبر ناست وو توره لنګوټه ئې تړلې وه

عن عمر بن حريث عن ابيه قال كانى انظر الى رسول الله ﷺ على المنبر و عليه عمامة سوداء قد ارخى طرفيها بين كتفيه(2).

ژباړه: حضرت عمر بن حریث له خپل پلار څخه روایت کوي هغه فرمایي: یقیناً لکه زه چې اوس رسول الله ﷺ ته ګورم چې پر منبر ناست وو توره لنګوټه ئې تړلې وه او د لنګوټې دواړه طرفه ئې د اوږو په منځ کې را ایله کړي وه.

## د سپین رنګ د لنګوټې ثبوت

قال السخاوي فى فتاويه رايت من نسب لعائشة ان عمامة رسول الله ﷺ كانت فى السفر بيضاء و الحضر سوداء(3).

ژباړه: علامه سخاوي رحمة الله علیه په خپله فتاوی کې وایي چې ما هغه کس ولیدی چا چې به حضرت عائشې رضي الله عنها طرف ته دا روایت منسوباوه چې نبي علیه السلام لنګوټه به په سفر کې سپینه وه او په کور کې به

(1) شمائل للترمذي: اول ټوک – ۱۰٦ مخ.
(2) غذالالباب: ج ۲، ص ۱۹۱، ابو داود: ج ۲، ص ٥٦۳.
(3) غذالالباب: ج ۲، ص ۱۹۲.

توره وه.

د پورتني بيان څخه دا نتيجه واخيستل سوه چي د نبي ﷺ څخه تور رنګ او سپين رنګ لنګوټه تړل دواړه ثابتي دي. بايد وويل سي چي د کوم خاص رنګ پابندي ضروري نه ده بلکي فقهاء دواړه رنګه لنګوټه تړل مستحب بولي[1]. خو دا خبره د يادوني وړ ده چي د نبي ﷺ سپين رنګ لباس ډېر خوښېدی او د سپين رنګ لباس ترغيب به ئې ورکوی نو د دې وجې څخه سپين رنګ لنګوټه تړل بهتر دي[2].

عن ابن عباس ﷺ ان رسول الله ﷺ البسوا من ثيابكم البياض فانها من خير ثيابكم و كفنو فيها موتاكم و ان خير اكحالكم الاثمد يجلو البصر و ينبت الشعر[3].

ژباړه: د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دئ چي نبي ﷺ وفرمايل چي سپيني جامې اغوندئ ځکه چي دا ستاسي د ټولو جامو څخه غوره دي او هم په دې کي خپلو مړو ته کفن ورکوئ. همدارنګه حضرت سمره ﷺ وايي چي نبي ﷺ وفرمايل چي سپيني جامې اغوندئ ځکه دا ډېري پاکيزه او خوندوري دي[4].

د نارينه له پاره له سپين رنګ څخه علاوه نور رنګونه هم جايز او روا دي البته خاص سور رنګ او زعفراني د نارينه له پاره منع ګڼل سوي دي.

---

[1] ويستحب الابيض و كذا الاسود لانه شعار بنى عباس، ردالمحتار: ج ٦، ص ٣٥١.

[2] احسن الفتاوى: نهم ټوک – ٥٢ مخ.

[3] ابو داود: ج ٢، ص ٩٠، باب البياض.

[4] عن سمرة قال قال رسول الله ﷺ البسو البياض فانها اطهر و اطيب و كفنو فيها موتاكم، [سنن ابى داود: ج ٢، ص ٩٠، باب فى البياض].

حضرت عبدالله بن عمر ﷺ وايي چي يو سړي سور رنګ جامې اغوستې وې او د رسول اکرم ﷺ په حضور کي حاضر سو او سلام ئې واچاوه خو رسول الله ﷺ د سلام جواب ور نه کړ[1].

حضرت عبدالله بن عاص ﷺ وايي چي: رسول اکرم ﷺ زما پر تن باندي زعفراني رنګ دوې جامې وليدلې او راته وې ويل: دا د کفارو لباس دئ دا جامې مه اغونده، ما ورته وويل چي دا جامې پرېمينځم؟ رسول اکرم ﷺ راته وويل: نه بلکي وئې سوځه[2].

## د سپين رنګ جامه او صحت

په روغتونو کي د سپين رنګ جامې عام دود او رواج دي، همدارنګه د ناروغيو د علاج اړوند د لمر د وړانګو قدر او ارزښت هم يو واقعيت دئ، له همدې کبله بايد ناروغ ته دا موقع او چانس ورکړه سي چي د لمر له وړانګو ګټه واخلي او د دې کار له پاره د سپين لباس موثريت او اغېزه هم مسلم حقيقت دئ، همدارنګه په عامو حالاتو کي هم جسم په سپين لباس ښه وده کوي. دا په تجربه باندي ثابته سوې ده چي په سپين لباس کي د انسان زړه خوشحال وي، نو له همدې کبله دا بايد وواي چي د خپل توان تر بريده بايد سپين لباس استعمال کړو.

---

[1] عن عبدالله بن عمرو قال مرعلى النبى ﷺ رجل عليه ثوبان احمران فسلم عليه فلم يرد النبى ﷺ عليه [ابو داود: دوهم ټوک – ۹۲].

[2] عن عبد الله بن عمرو بن العاص قال: رأى رسول الله ﷺ على ثوبين معصفرين فقال ان هذه ثياب الكفار فلا تلبسها و فى رواية: قلت اغسلهما قال بل احرقها [مشکوة: دوهم ټوک – ۴۸۳ مخ].

# سپین رنګ او جدید ساینس

سپین رنګ د محبت او امن علامه ده، په فطري ماحول کي دا رنګ د لمر، سپوږمۍ، شیدو او له شیدو څخه د جوړو سوو شیانو رنګ هم سپین دئ له همدې کبله ویلای سو چي سپینه جامه استعمالول د فطرت غوښتنه ده.

دلته به د مثال په ډول څو ساینسي تحقیقات درته بیان کړو:

1. کوم کسان چي سپین لباس استعمالوي هغه د پاکو او غوره خیالاتو خاوندان وي دا کسان صلح خوښوونکي او امن پسند، د خلګو د همدردۍ او خیر غوښتونکي وي.
2. د کینسر (سرطان) د ناروغۍ په مخنیوي کي سپین لباس ډېر لوی اثر او اغېز لري.
3. همدا رنګه د پوستکي (جلدي) ناروغیو د مخنیوي له پاره هم د سپین لباس استعمال ډېر ګټه رسوي.
4. د ګرمۍ په موسم کي سپین لباس د ګرمۍ مخنیوی کوي.
5. سپین لباس د زړه او دماغ په خوشحالتیا کي لوی اثر او اغېزه لري.
6. د سپین لباس استعمال د آرام او سکون لامل ګرځي[1].

[1] عمامه کی مسائل اور فضائل: ص ۸۹.

# نهمه برخه

## د نبي عليه السلام د رخچيني (خولۍ) بيان

له مخکنيو بيانونو څخه دا خبره څرګنده سوه چې نبي عليه السلام، اصحابو او د امت بزرګانو ټولو لنګوټه تړل د ځان له پاره خوښ ګرځولې وه او په ځينو حديثونو کې د دې وضاحت هم وسو، چې تر لنګوټې لاندې رخچينه استعمالول د مسلمانانو او مشرکانو په منځ کې يو امتيازي (بېلوونکې) نخښه ده، نو دلته د نبي عليه السلام د رخچيني بيان کوو.

## د نبي عليه السلام يوازې رخچينه پر سر کول

په دې کې د علماوو اختلاف دئ چې نبي عليه السلام يوازې رخچينه پر سر کړې ده، او که نه.

**د ملا علي قاري وينا:**

ملا علي قاري رحمة الله عليه وايي چې نبي عليه السلام يوازې رخچينه بې له

لنګوټۍ نه ده پر سر کړې او نه د دې څه ثبوت سته[1].

## يوازې رخچينه ثابته ده

د علامه سيوطي وينا:

علامه سيوطي وايي چې نبي عليه السلام به کله رخچينه لاندې تر لنګوټۍ پر سر کول کله به ئې بې له لنګوټۍ پر سر کول او کله به ئې لنګوټه بې له رخچينې تړل[2].

همدارنګه صاحب د عون المعبود وايي:

چې نبي عليه السلام به کله رخچينه لاندې تر لنګوټۍ پر سر کول او کله به ئې رخچينه بې له لنګوټۍ پر سر کول[3].

د دې پورتني تحقيق څخه دا څرګنده سوه چې يوازې د رخچينې پر سر کول هم ثابت دي لکه څرنګه چې امام بخاري رحمة الله عليه وايي چې د فتح مکې په ورځ د نبي کريم صلى الله عليه وسلم پر سر مبارک مغفر وه (چې دا د اوسپنې رخچينې ته ويل کېږي)[4].

---

[1] روى عن ابن عباس ان رسول الله صلى الله عليه وسلم كان يلبس القلانس تحت العمائم و يلبس بغير القلانس اه و لم يرو انه صلى الله عليه وسلم لبس القلنسوة بغير العمامة [مرقات: ج ٨، ص ١٤٧].

[2] كان يلبس القلانس تحت العمائم و بغير العمائم و يلبس العمائم بغير القلانس [سراج المنير شرح جامع الصغير: ص ١٨٣].

[3] كان يلبس القلانس تحت العمائم و بغير العمامة اه عون المعبود: ج ۴، ص ٩٦، عمامة كى مسائل اور فضائل.

[4] عن انس قال دخل رسول الله صلى الله عليه وسلم يوم فتح مكة و على رأسه مغفر من حديد [الوفاء للابن جوزي: دوهم ټوک - ٦٦٨ مخ].

نو ځکه يو ازي رخچينه پر سر کول هم جائز دي.

نو ددې اختلاف پر بنياد د دې حديث: عن النبي ﷺ قال فرق ما بيننا و بين المشركين العمائم على القلانس.

ژباړه: د نبي ﷺ څخه روايت دئ چي فرمايي چي فرق زموږ او مشرکانو په منځ کي لنګوټه تړل پر رخچينه باندي دي.

په تشريح کي هم اختلاف د علماوو دئ.

لومړی: دا خبره د يادوني وړ ده چي دا حديث قوي دئ او که ضعيف، د ځينو علماوو په اند دا حديث غريب دئ او سند قائم نه دئ. خو ملا علي قاري وايي چي ابو داود شريف دا حديث رانقل کړی دئ او څه خبرې نه ده پکښې کړې، نو کېدای سي چي د دې حديث سند قائم وي[1].

دوهم: د دې حديث په مطلب کي دوه احتماله دي:

لومړی: چي موږ لنګوټه پر رخچينه تړو او مشرکان ئې بې له رخچيني تړي.

دوهم: دا چي موږ لنګوټه پر رخچينه تړو او مشرکان يو ازي رخچينه پر سر کوي دغه دوهم صورت ته ملا علي قاري رحمه الله، ابن عربي او علامه زرقاني او داسي نورو تګ کړی دئ.

د دوی د قول خلاصه دا ده:

چي يو ازي رخچينه پر سر کول د سنت طريقې خلاف ده، ځکه دا د کافرانو جامه ده او زموږ او د مشرکانو په منځ کي بېلوونکې علامه ده

---

[1] رواه ابو داود و سکت عنه و لعل اسناده قائم او يحصل القيام بهما [مرقات: اتم ټوک - ۱۴۷ مخ].

چي مشرکان یوازي رخچینه پر سر کوي او موږ لنګوټه پر رخچینه سربېره تړو[1].

نو د دې حضراتو په اند یوازي رخچینه پر سر کول د مسلمانانو له پاره جائز نه ده بلکه مکروه ده.

او لومړي صورت ته علامه طیبي رحمه الله تګ کړی دئ دی وایي:

موږ لنګوټه پر رخچینه تړو او مشرکان یوازي لنګوټه تړي بې له رخچینې[2].

دغه قول شاه انورشاه کشمیري صاحب رحمه الله او مولانا محمودالحسن صاحب او مولانا خلیل احمد سهارنپوري غوره بللی دئ او ترجیح ئې ورکړې ده[3].

نو له دې څخه دا نتیجه واخیستل سوه چي د حدیث مراد دا دئ چي مشرکانو به بې له رخچینې لنګوټه تړل نو دا خبره څرګنده سوه چي یوازي رخچینه پر سر کول څه پروا نه لري او د موجوده وخت د ډېرو علماوو رایه هم دغه ده چي وروسته به ئې په مسائلو کي بیان راسي.

---

(1) فلبسها و حدها مخالف للسنة کیف و هی ذی الکفرة، [مرقات: ج ۸، ص ۱۴۷]. و تحصل السنة بکونه علی الراس او علی قلنسوة ففی الخبر فرق مابیننا و بین المشرکین العمائم علی القلانس و اما لبس القلنسوة و حدها فهو ذی المشرکین و المواهب اللدینة، ص ۸۷، مجموع الفتاوی: ص ۴۵۴.

(2) نحن نتعمم علی القلانس و هم یکتفون بالعمائم، مجموع الفتاوی: ص ۴۵۴.

(3) یرید ان المشرکین کانو یعممون علی رؤسهم من غیران یکون تحت العمامة قلنسوة و نحن نعمم علی القلنسوة [انوارالمحمود: ج ۲، ص ۴۴۶].

# د رخچيني (خولۍ) اړوند حديثونه

عن ابن عباس ﷺ قال كان رسول الله ﷺ يلبس قلنسوة بيضاء[1].

ژباړه: د حضرت عبدالله بن عباس ﷺ څخه روايت دئ فرمايي چي نبي ﷺ سپينه رخچينه پر سر كول.

عن عمر بن الخطاب يقول سمعت رسول الله ﷺ يقول الشهداء اربعة، رجل مؤمن جيد الايمان لقى العدو فصدق الله حتى قتل فذلك الذى يرفع الناس اليه اعينهم يوم القيامة هكذا و رفع راسه حتى وقعت قلنسوة[2].

ژباړه: د حضرت عمر بن خطاب ﷺ څخه روايت دئ فرمايي چي شهيدان څلور قسمه دي: يو هغه مومن سړی دئ چي د هغه ايمان قوي وي او د دښمن سره د مخامخ كېدلو په وخت كي د الله ﷻ د وعدو تصديق وكړي (و وجنګېږي) او شهيد سي د هغه سړي (د لوړو درجو) حال داسي دئ چي خلګ به په ورځ د قيامت د ده و طرف ته داسي سترګي پورته كړي وي دا رنګه (نبي ﷺ يا حضرت عمر ﷺ سر پورته كړی تر دې) چي د نبي ﷺ يا د حضرت عمر ﷺ د سر څخه رخچينه ولوېده.

له دې څخه دا څرګنده سوه چي نبي ﷺ رخچينه پر سر كول.

---

(1) عون المعبود: ج ۴، ص ۹٦.

(2) رواه الترمذي: ج ۱، ص ۲۹۴.

## د نبي عليه السلام څخه د درې ډوله خولیو ثبوت سته

لومړی: هغه دا رنګه وه چې پر سر بالکل هموار او د سر سره به لګېدلې وه، پورته به نه وه.

دوهمه: هغه دا وه چې د سر څخه به څه لوړه وه.

دریمه: هغه دا وه چې یو څه غټه او غوږو ته راکښته سوې وه چې نبي عليه السلام به د جنګ په مرحله کې پر سر کول او په ځینو وختونو کې چې به نبي عليه السلام د سترې له پاره کوم شی پیدا نه کړنو د سترې له پاره به ئې د مخ طرف ته ایښوول[1].

رخچینه پر سر کول اسلامي تهذیب دئ او سر تور سر ګرځېدل انګرېزی تهذیب دئ.

د پورتني بیان څخه دا نتیجه واخیستله سوه چې لنګوټه یا خولۍ په لمانځه کې یا د لمانځه څخه غیر په عامو حالاتو کې پر سر کول د نبي عليه السلام او د اصحابو څخه ثابت دي او نن ورځ هم د دیندارہ خلګو طریقه ده. خو بل اړخ ته نن ورځ د رخچیني نه پر سر کېدل عام سوي دي په ځانګړي ډول په تعلیم یافته کسانو کې بالنسبه و نورو ته آن تر دې چې

---

[1] کان کمام اصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم بطحاء جمع کمه ... و هی القلنسوة المدورة ای کانت مبسوطه علی رؤوسم لازقة غیر مرتفعة عنها ... و کان یلبس القلانس الیمانیة و هن البیض المضربة و یلبس ذوات الاذان فی الحرب و کان ربما نزع قلنسوة فجعلها ستره یدیده و هو یصلی [مرقات: ج ۸، ص ۱۵۵، کتاب اللباس].
و یلبس القلانس (ذوات الاذن) اذ کان فی الحرب و کان ربما نزع قلنسوة فجعلها سترة بین یدیه و هو یصلی [تحفة الاحوذی: ج ۵، ص ۳۹۳، باب کیف کان کمام الصحابه].

په لمانځه کي هم په سر تور سر ولاړ وي او د ځان له پاره بې بنياده او بې بنسټه دلايل وايي چي ځيني د هغو څخه دا دي:

لومړی: چي رخچينه د نبي ﷺ څخه ثابته نه ده او دا ملايان يوازي سختي کوي.

دوهم: د رخچيني نه پر سر کېدل په دې کي څه ګناه نسته او بې له رخچيني لمونځ کول په دې کي هم څه قباحت نسته ځکه د عربو په ملکو کي قرآن کريم نازل سوی دئ او هلته هم ډېر کسان بې له رخچيني لمونځ کوي نو که په دې کي څه ګناه وای نو هغو خلکو به پر سر کول او يا داسي نور څه وايي.

## رخچينه پر سر کول اسلامي تهذيب دئ

لنګوټه ترل يا رخچينه پر سر کول د اسلامي جامه او اسلامي تهذيب دئ او سر تور سر ګرځېدل انګرېزي تهذيب دئ او د اسلام بالکل خلاف دئ. نو دا خبره کول چي خولۍ په حديث ثابته نه ده او يا دا ملايان سختي کوي دا يوازي ناسم او غلطه خبره ده ځکه مخته د دې ثبوت په حديث شريف وسو، نو د داسي خبرو څخه ځان ژغورل اړين دي او اسلامي تهذيب اختيارول په کار دي.

او پاته دا خبره سوه چي په سر تور سر لمونځ کول دي نو دا که د عاجزۍ له وجي وي بيا خو څه بدي پکښي نسته او که د عادت له وجي په سر تور سر لمونځ کوي نو دا بيا مکروه دي او نن ورځ چي کوم خلک لوڅ سر لمونځ کوي دا بېشکه مکروه تنزيهي دي. نو د دې پر ځای چي سړی د شرم له وجي لنګوټه ترل پرېږدي په کار دا دي چي د هغې اهتمام

او درناوی وکړي او د عربو عام خلک چي بې له رخچیني او لنګوټې لمونځ کوي دا کوم شرعي دلیل نه دئ بلکي د عربو هم دیندار او علماء د لنګوټې او رخچیني سره لمونځ کوي[1].

## د رخچیني اړوند ساینسي تحقیقات

1. د شدیدي ګرمۍ په موسم کي خولۍ د جل (لمبې) وهلو په مخنیوي کي لوی اثر لري.
2. همدارنګه د ډېر یخ په وخت کي خولۍ د یخ په مخنیوي کي هم ډېره ګټه کوي.
3. د خطر او کومي ضربې په وخت خولۍ سر له ډېرو خطرو څخه ژغوري
4. د خولۍ په واسطه سر او وریښتان له خاورو او ګردونو څخه ساتل کېږي.
5. د باران او واوري او یخ له اغېزې څخه سر محفوظ ساتي.
6. د سرطان د خطرناکي ناروغۍ مخنیوی کوي.
7. د نزلې او زکام په مخنیوي کي هم خولۍ لوی اثر لري[2].

---

(1) اور ننگی سرنماز پڑھنی کا حکم یه هی که اگر کوئی شخص کبھی اتفاق سی بغیر ٹوپی نماز پڑھ لی اس مین کوئی مضائقه نهین، لیکن ننگی سر نماز پڑھنی کی عادت بنانا مکروہ تنزیهی هی ... آجکل جولوگ ننگی سر رهتی هین اور ننگی سر نماز پڑھتی هین ان کا فعل بلاشبه مکروه تنزیهی اور اسلامی شعار کی خلاف هی [عمامه کی فضائل اور مسائل: ص ۱۴۲].

(2) عمامه کی مسائل اور فضائل: ص ۸۹.

# لسمه برخه

## د لنګوټې تړلو طريقه او آداب

مسلمانانو ته د لنګوټې په تړلو کي اسلامي طريقه غوره کول په کار دي او غير اسلامي طريقې څخه ځان ژغورل اړين دي.

اوس دا خبره چي اسلامي طريقه څه ده دا به د دې څخه څرګنده سي چي د نبي عليه السلام د لنګوټې په هکله راغلي دي.

هغه دا رنګه چي د نبي عليه السلام لنګوټه نه ډېره غټه وه چي پر سر به ئې بوج راوستی او نه به ډېره وړه وه چي سر ئې د يخ او ګرمۍ څخه نه ساتی بلکي ميانه او متوسطه وه[1].

او همدارنګه د تړلو طريقه ئې دا وه چي يو ول به ئې پر بل باندي پر سر پېچی په آخر کي به ئې بندوی[2].

نو د هر کس له پاره په کار ده چي دغه طريقه اختيار کړي او نيت

---

[1] لم تکن عمامته ﷺ بالکبيرة التی توذی حاملها، ولا الصغيرة التی تقصر عن وقاية الراس من الحرد والبرد بل وسطاً بين ذلک [اعانة الطالبين: ج ۲، ص ۸۲].

[2] عن ابي سلام قال قلت لابن عمر کيف کان رسول ﷺ يعتم قال کان رسول ﷺ يدير کور العمامة علی راسه و يغرزها من ورائه [عمدة القاري: ج ۲۱، ۳۰۸، الحاوي للفتاوی: ج ۱، ص ۱۰۳].

یوازي د نبي ﷺ د نست پیروي کول وي نور څه مقاصد پکښي نه وي او همدارنګه به ئې سم تړي چې د انسان حیثیت او ښایست پکښي ضرر ونه رسېږي او نه به د فاسقانو او متکبرینو او ظالمانو پېښې پکښې سوي وي.

## د لنګوټې تړلو آداب

1. په ولاړه باندي لنګوټه تړل او په ناسته باندي پرتوګ اغوستل ښه کار دئ بلکي په ځینو کتابو کي لیکي چې په ولاړه پرتوګ اغوستل او په ناسته لنګوټه تړل هېره زیاتوي(1).
2. کله چې یو سړی لنګوټه خلاصوي نو دا مناسبه نه ده چي ټول په یوه وار خلاصه کړي او پر مځکه ئې وغورځوي ځکه دا د لنګوټې بې عزتي او سپکاوی دئ بلکي څرنګه چي ئې ول پر ول تړلې وي پر هغه طریقه ئې باید ول پر ول خلاصه کړي(2).
3. لنګوټه باید په داسي طریقه سره وتړل سي چي بیا په اساني سره خلاصه نه سي ځکه نبي ﷺ به هم په داسي طریقه لنګوټه

---

(1) فعلیک ان تسرول قاعداً تتعمم قائماً [مدخل: ج ۱، ص ۱۴۱]. ان التعمیم قاعداً و التسرول قائماً یورث النسیان [غذالالباب: ج ۲، ص ۱۹۷].

(2) فلا ینبغی ان یرفعها من الراس و یلقیها علی الارض دفعة واحدة لکن ینقضها کما لفها لانه هکذا فعل رسول الله ﷺ بعمامة عبدالرحمن بن عوف لما فیه اهانتها [غذالالباب: ج ۲ ص ۱۹۷]. من اراد ان یجدد اللف للعمامة ینبغی له ان ینقضها کوراکورا فان ذلک احسن من رفعها عن الراس و القائها فی الارض دفعة واحده [ردالمحتار: ج ٦، ص ۷۵۵].

ترلې وه چي په اساني سره به نه خلاصېده[1].

4. په راسته لاس به ئې تړي او د راسته طرفه څخه به ئې شروع کوي او پر چپه طرف به ئې ور اړوي[2].
5. تر لنګوټې ترلو وروسته باید په هینداره کي وګوري او لنګوټه به پکښې سم کړي[3].
6. لنګوټه باید تل پر سر کړئ په ځانګړي ډول د جمعې په ورځ ورته خاصه پاملرنه کوئ[4].
7. هر رنګه لنګوټه پر سر کول صحي دي مګر د اقامت په حالت کي سپینه او په سفر کي توره لنګوټه ډېره غوره دي[5].
8. شمله باید د دوا ړو اوږو تر منځ پرېږدي[6].
9. شمله باید دومره اندازه اوږده نه سي چي تر شرعي حد تېره سي ځکه دا اسراف دئ او که په طریقه د تکبر وه بیا حرام دي[7].



---

[1] عن انس بن مالک ﷛ قال رایت رسول الله ﷺ یتوضا و علیه عمامة قطریة فادخل یده من تحت العمامة فمسح مقدم راسه فلم ینقض العمامة [ابو داود: ج ۱، ص ۵٦، باب المسح علی العمامة].

[2] کان یحب التیمن ما استطاع [بخاری: ج ۲، ۸۱۰].

[3] و ینظر فی المراة و یستوی عمامة [قرطبي: ج ۲، ۱۹٦].

[4] په اسلام کي ټولنیز آداب: ص ۱۸٦.

[5] په اسلام کي ټولنیز آداب: ص ۱۸٦.

[6] په اسلام کي ټولنیز آداب: ص ۱۸٦.

[7] په اسلام کي ټولنیز آداب: ص ۱۸٦.

# يوولسمه برخه

## د لنګوټې اړوند ځيني مهم مسائل

### په لمانځه کي د لنګوټې تړلو حکم

مسئله: په لمانځه کي لنګوټه تړل به له دوو حالتونو څخه خالي نه وي، يا به په يوه لاس سره وي نو دا مکروه دي يا به په دواړو لاسو سره وي نو دا لمونځ فاسدوي[1].

## په لمانځه کي د لنګوټې سمولو حکم

مسئله: که چيري ئې لنګوټه په داسي طريقه تړلې وي، چي د هغې په وجه سره نه سي کولای چي سجده وکړي نو هغه ئې په يوه لاس پورته کړه او سمه ئې کړه نو دا څه پروا نه لري[2].

## که په لمانځه کي لنګوټه ولوېږي څه به کوي؟

مسئله: که يو کس د سر لنګوټه پورته او پر مځکه ئې کښېښوول

---

[1] لو تعمم بيد واحد لا تفسد و لو تعمم باليدين تفسد [خلاصة الفتاوى: ج ۱، ص ۱۳۱].

[2] و لو لم يمكنه العمامة من ان يسجدها فرفعها بيد واحد او سوى العمامة بيد واحد لا يكره [خلاصة الفتاوى: ج ۱، ص ۵۷].

او یا پر مځکه ولوېده، ده بیرته راپورته کړه او پر سر ئې کړه نو دا لمونځ نه فاسدوي بلکي مکروه کوي ئې[1].

## مړي ته په کفن کي د لنګوټې ورکولو حکم

مسئله: په دې مسئله کي اختلاف دئ د درو امامانو لکه امام ابو حنیفه رحمة الله علیه، امام شافعي رحمة الله علیه او امام احمد حنبل رحمة الله علیه په رایه باندي مړي ته په کفن کي لنګوټه ورکول مکروه دي او امام مالک رحمة الله علیه او د وروستنیو احنافو په اند باندي په کفن کي لنګوټه ورکول مستحب دي خو غوره او مفتی به قول اول قول دئ چي مکروه دئ[2].

## پر لنګوټه باندي د مسح کولو حکم

پر لنګوټه باندي مسح کول جائز نه دي ځکه د دې په لیري کېدلو کي څه مشقت نسته[3].

## د لنګوټې پر ول باندي د سجدې کولو حکم

مسئله: که چیري د لنګوټې ول پر تندي باندي وي نو په دې حالت

---

[1] و ان رفع العمامة من راسه و وضعها على الارض او رفعها من الارض و وضعها على راسه لا يفسد بل يكره [عالمگیریه: ج ۱، ص ۱۰۸، الفصل الثانی فیما یکره].

[2] و کذ لم یذکر العمامة فی الکفن و قد کرهه بعض مشمایخالانه لو فعل ذلک لصار الکفن شفعا و السنة ان یکون وتراً [بدائع الصنائع: ج ۱، ص ۳۰٦].

[3] لا يجوز على العمامة و قلنسوة ... لعدم الحرج [درالمختار على هامش ردالمحتار: ج ۱، ص ۲۷۲، باب المسح].

کي د لنګوټې په ول باندي سجده کول مکروه ده او که چیري د لنګوټې ول تر تندي پورته وي او سجده د لنګوټې په ول باندي وکړي نو په دې صورت کي سجده نه ادا کیږي ځکه چي پزه یا تندی پر مځکه باندي و نه لګیده له دې وجهي په دې صورت کي ئې لمونځ نه صحیح کیږي[1].

## په لمانځه کي د مرداري لنګوټې حکم

د لنګوټې که یو طرفه مردار وي او بل طرف ئې پاک وي نو د هغې د استعمالولو طریقه دا ده چي پاکه حصه دي پر سر وتړي او ناپاکه حصه دي پر مځکه کښېږدي د دې ځخه وروسته لمونځ کول صحیح دي په دې شرط چي د مځکي طرف کوم چي ناپاک دئ د لمونځ کولو په وخت کي نه ښوریږی، او که د لمونځ کولو په وخت کي ناپاک طرف ښوریدی بیا لمونځ کول پکښي صحیح نه دي[2].

## په سر تور سر د لمونځ کولو حکم

په سر تور سر د لمونځ کولو له پاره ځلور صورتونه دي:

---

[1] قال العلامة ابو البرکات النسفی و کره باحدهما قال ابن نجیم تحت قوله و کره باحدهما ان صحة السجود علی الکور اذ کان الکور علی الجبهة او بعضها اما اذ کان علی الراس فقط و سجد علیه و لم تصب جبهة الارض علی القول بتعینها و لا انفه علی القول بعدم تعینها فان الصلوة و لاتصح لعدم السجود علی محله و کثیر من العوام یتساهل فی ذلک [البحر الرائق: ج ۱، ص ۳۱۹، باب صفة الصلوة].

[2] اذ کان النجس احد طرفی العمامة وضعتها علی الارض و صلی ان کانت کبیرة بحیث لو قام لا یتحرک الطرف النجس تجوز و ان کانت الصغیرة بحیث یتحرک لا یجوز [خلاصة الفتاوی: ج ۱، ص ۷۵].

لومړی: د احرام په حالت کي په سر تور سر لمونځ کول واجب دي ځکه د احرام په حالت کي به سړی سر نه پټوي(1).

دوهم: په حالت د خشوع او عاجزۍ کي په سر تور سر لمونځ کول جائز دي(2).

دریم: د لنګوټې د پیدا کېدلو سره بیا هم په سر تور سر لمونځ کول له وجي ځخه د کهالۍ او سستۍ او یا له وجي ځخه د دې چي لمونځ ځه اهم شی نه بولي نو بیا مکروه دئ(3).

ځلورم: د لمانځه د بې حرمتۍ او بې قدرۍ د وجي ځخه سر تور سر لمونځ کول کفر دئ(4).

## د امام له پاره په مسجد کي د لنګوټې ایښوولو حکم

مسئله: په ځینو علاقو کي پر رخچینه سربېره لنګوټه تړل سوې وي او د محراب سره نژدې په مېخ باندي ځړېږي نو امام چي کله د

---

(1) عن ابن عمر رضي الله عنه ان رجلاً سأل رسول الله ﷺ ما يلبس المحرم من الثياب فقال رسول الله ﷺ لا تلبس القميص ولا العمائم و الاالسراويلات و لا البرانس و الالخفاف [صحيح البخاري: ج ۲، ص ۵۵۹، باب ما لا يلبس المحرم من الثياب].

(2) و لا بأس به اذ فعله تذللا و خشوعا بل هو حسن [فتاوى الهنديه: اول ټوک – ۱۰٦ مخ]. الفصل الثانى فيما يكره فى الصلوة و ما لا يكره.

(3) و تكره الصلوة حاسرا راسه اذا كان يجد العمامة و قد فعل ذلك تكاسلا او تهاونا بالصلوة كذا فى الذخيره، [فتاوى الهنديه: ج ۱، ص ۱۰٦، الفصل الثانى فيما يكره فى الصلوة و ما لا يكره].

(4) (و صلوته حاسرا) اى كاشفا راسه للتكاسل و لا باس به للتذلل، و اما للاهانة بها فكفر [درالمختار على صدر ردالمحتار ج ۱، ص ٦۴۱، شرح الوقايه: ج ۱، ص ۱٦۸].

جماعت له پاره مخته کېږي نو دا لنګوټه پر سر کړي او چي د لمانځه څخه فارغ سي نو بيا ئې بيرته پر مېخ باندي وځړوي نو دا هم د سنت خلاف دئ ځکه لنګوټه يوازي د لمانځه سنت نه دئ بلکي د ټول ژوند سنت ده[1]. البته دا خبره د يادوني وړ ده که چيري داسي وي چي يو کس د لمانځه له پاره يو خاص لنګوټه تعين کړې وي او د کور له پاره بله بيا چي کله مسجد ته ځي هغه وتړي او کله چي د مسجد راغلی بيا هغه کښېږدي او هغه دوهمه کومه چي په کور کي استعمالوي هغه وتړي نو دا جائز ده[2].

## د دوستۍ په مراسمو کي د لنګوټې ورکولو حکم

مسئله: په ځينو علاقو کي د دوستۍ په مراسمو په ځانګړي ډول د اولي نکاح (يعني د کوزدې) په وخت کي د ښځي د کورنۍ خلګ د زوم د کورنۍ و خلګو ته لنګوټې ورکوي نو دا جائز دي په دې شرط چي دا لازم ونه ګڼي که ئې ورنه کړي بيا خپګان او جنجال کوي[3].

---

(1) ځکه مولانا ذکريا صاحب وايي چي لنګوټه تړل همېشنی سنت (سنت مستمره) دئ، [خصائص نبوي: ج ، ص ۱۱۵].

(2) عن عائشة رضي الله عنها ان عمامة رسول الله ﷺ کانت فی السفر بيضاء و فی السفر سوداء و فی الحضر بيضاء و کل منهما سبعة اذرع [سبل الهدی والرشاد: نهم ټوک – ۲۷۶ مخ].

(3) عن عبدالله بن دينا عن عبدالله بن عمر ان رجلاً من الاعراب لقيته بطريق مکة فسلمه عليه عبدالله بن عمر و حمله علی حمار کان يرکبه و اعطاه عمامة کانت علی راسه قال ابن دينار فقلنا له اصلحک الله انهم الاعراب و يرضون باليسير فقال عبدالله

## د لنګوټې د تړلو په وخت کې نیت کول

مسئله: د هر سنت د پر ځای کولو له پاره په کار دا ده چې د هغه د سنت کېدلو نیت وسي پر داسې طریقه چې الله او رسول د الله راځخه راضي سي او کوم کس چې یوازې د رسم او رواج یا د بل کس د راضي کولو له پاره لنګوټه تړي نو د دې چې کوم برکتونه او ثوابونه دي نو د هغو څخه به محروم او بې برخې وي[1].

## د زني بند حکم

مسئله: د زني لاندې ول (یعني زني بند) د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه او امام شافعي رحمة الله علیه په اند مکروه دي او یوازې شمله سنت ده[2].

## څوک چې لنګوټه نه تړي

مسئله: څوک چې لنګوټه د شرم او تکبر له وجې څخه نه تړي نو ګنهکار دئ او که د شرم او تکبر څخه بې له ئې نه تړي نو بیا ګنهکار نه

---

ان اباه هذا کان ود العمر بن الخطاب واني سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول ان ابر البر صلة الرجل اهل ود ابيه [مسلم: ج ۲، ص ۳۱۴، باب فضل صلة اصدقاء الاب].

(1) انما الاعمال بالنيات [قواعد الفقهة: ۵۲ مخ].

(2) ولا يسن تحنيک العمامة عند الحنفية والشافعية و تسن العذبة لا غير [الموسوعة الفقهيه: ج ۱۰، ص ۲۷۷].

دئ[1].

## د لنګوټې سپکاوی کفر دئ

د لنګوټې سپکاوی او بې عزتي کول یا داسي الفاظ تر خولې وتل چي په هغې د لنګوټې سپکاوی کېږي نو دا علماوو شرعاً کفر بللی دئ ځکه د سنتو بې قدري د انبیاوو بې قدري ده[2].

## د ورېښمو لنګوټه تړل

د ورېښمو لنګوټه تړل حرامه ده، ځکه نبي ﷺ د ورېښمو جامې اغوستل د نارینه وو له پاره حرامي ګرځولي دي[3].

---

(1) و من علم انها سنة و ترکها استنکافاً عنها اثم او غیر مستنکف فلا [البحر الرائق: ...].

(2) و یکفر باستخفافه بسنة من السنن [البحر الرائق: ج ۵، ص ۱۳۰]. بل بالمواظبة علی ترک سنة استخفافا بها بسبب انه فعلها النبی ﷺ زیادة او استقباحها کمن استقبح من آخر جعل بعض العمامة تحت حلقه او احفاء شاربة [ردالمحتار: ج ۴، ص ۲۲۲، باب المرتد، فتاوی حقانیه: ج ۱، ص ۱۲۹].

(3) عن عبدالله بن زریرانه سمع علی بن ابي طالب رضي الله عنه یقول ان نبی الله ﷺ اخذ حریراً فجعله فی یمینه و اخذ ذهبا فجعله فی شماله ثم قال ان هذین حرام علی ذکور امتی [سنن ابو داود، باب فی حریر للنساء، ج ۲، ص ۸۹].

# د وربښمو په نامه چې کومې لنګوټې دي (لنګۍ) د دې د تړلو حکم

لنګۍ تړل جائز ده او دا وربښم نه ده[1].

## لنګوټه ئې تړلې وي او د سر منځ ئې خالي وي د دې حکم

مسئله: ځینې خلک داسې لیدل کېږي چې لنګوټه ئې تړلې وي او د سر د منځ برخه ئې لڅه پرې ایښې وي نو د داسې لنګوټې سره لمونځ کول مکروه دي ځکه د داسې لنګوټې تړلو څخه نبي ﷺ منع کړې ده[2].

## بې له لنګوټې یوازې په رخچینه کې لمونځ څرنګه دئ؟

مسئله: که د یو کس یوازې رخچینه پر سر وه او لنګوټه ئې نه وه تړلې لمونځ ئې جائز دئ، البته که چیرې داسې وه چې دی یو مجلس ته بې له لنګوټې د شرم د وجې نه ورتلی نو د دغه کس له پاره یوازې په رخچینه کې لمونځ مکروه دئ[3].

---

(1) احسن الفتاوی.

(2) و یکره الاعتجار و هو ان یکور عمامته و یترک وسط راسه مکشوفا اه [فتاوی هندیه: ج ۱، ص ۱۰٦]، و یکره اشتمال الصماء و الاعتجار قال ابن عابدین تحت قوله و الاعتجار نهی النبي ﷺ عند و هو شد الراس و تکویر عمامة علی راسه ترک وسطه مکشوفا [ردالمحتار: ج ۱، ص ٦۵۲].

(3) و کلا ذکروا ان المستحب ان یصلی فی قمیص و ازار و عمامة و لا یکره اللاکتفاء بالقلنسوة و لا عبرة لما اشتهر بین العرام من کراهة ذلک [خیرالفتاوی: ج ۲، ص ۲۵۴]، تکره الصلوة بدونها فی البلاد التی عادة سکانها انهم لایذهبون الی الکبر

## که امام بې له لنګوټې وو او مقتديان سره د لنګوټې وه

مسئله: که امام لنګوټه نه وه تړلې يوازې رخچينه ئې پر سر وه او مقتديانو لنګوټه تړلې وه نو په دې کې هيڅ کراهت نسته بلکې لمونځ ئې صحيح دئ[1].

## لنګوټه بې له رخچيني جائز ده

مسئله: که يو کس تر لنګوټې لاندې رخچينه پر سر نه کړې د دې که څه هم ثبوت د نبي عليه السلام څخه راغلی[2]، مګر عام عادت شريفه د نبي صلی الله عليه وسلم دا وو چې تر لنګوټې لاندې به ئې رخچينه پر سر کول او د صالحينو او بزرګانو هم دغه معمول وو. د دې وجې څخه بې له رخچيني لنګوټه تړل خلاف اولی ده مکروه نه ده خو لمونځ بې له مکروه والي جائز دئ[3].

---

بدون العمامعة بل ولا يخرجون من بيوتهم الا متعممين و اما فی البلاد التی لا يعتادون فيها ذلک فلا [نفع المفتی و السائل: ص ۳۷].

(1) و قد اشتهر بين العوام ان الامام ان کان غير متعمم و المقتدون متعممين فصلاتهم مکروهة و هذا يضاً زخرف من القول لا دليل عليه [نفع المفتی و السائل: ص ۳۷، خير الفتاوی: ج ۲، ص ۲۵۴].

(2) کان يلبس القلانس تحت العمائم و بغير العمائم و يلبس العمائم بغير القلانس [تحفة الاحوذی: ص ۱۸۳].

(3) احسن الفتاوی: ج ۸، ص ٦٧].

# لنګوټه تړل سنت ده

مسئله: پر دې خبره د ټولو علماء کرامو اتفاق دئ چې لنګوټه تړل سنت ده[1].

# بې له شملې لنګوټه

بې له شملې لنګوټه تړل د سنت څخه خلاف ده[2].

# د لڅ سر ګرځېدلو حکم

اسلام د لوړو اخلاقو او کردار تعلیم ورکوي او د خرابو اخلاقو څخه ئې منع کوي نو لڅ سر په بازارونو او کوڅو کې ګرځېدل د اسلام په نظر داسې یو عیب دئ چې د انسان د مروت او شرافت خلاف دئ[3].



---

(1) و هی نوعان الاول سنة الهدی و تارکها یستوجب اساءة ... و الثانی الزوائد و تارکها لایستوجب اساءة، کسیر النبی عليه السلام فی لباسه و قعوده و قیامه، فان هولاء کلها لا تصدر منه علی وجه العبادة و قصد القرابة بل علی سبیل العادة [نورالانوار: ص ١٦٧] عن زبیر بن جوان عن رجل من الانصار قال جاء رجل الی ابن عمر فقال یا ابا عبدالرحمن العمامة سنة فقال نعم [عمدة القاري: ص ٣٠٧.

(2) بعض لوګ شمله بالکل نهین لټکاتی یه سنت کي خلاف تهی [عمامه کی مسائل اور فضائل، نفع المفتی ولسائل: ص ٣٧].

(3) و لا یخفی علی عاقل ان کشف الراس مستقبح و فیه اسقاط مروت و ترک الادب [تلبیس ابلیس: ٣٧٣ مخ]. و یکره کشف راسه بین الناس [غنیة الطالبین: اول ټوک – ١٣ مخ]. آپ کې مسائل اور اون کا حل.

# دوولسمه برخه

## د لباس (جامې) اړوند بيان

بې ځايه به نه وي که د لباس (جامې) ځيني مهم مسائل را څرګند سي. ځکه لنګوټه او جامې ټول د ملبوساتو د جملې څخه دي.

## د مسلمان لباس بايد څرنګه وي؟

د لباس په هکله د شريعت تعليمات او لارښووني ډېري معتدلي دي، ځکه ئې د کوم لباس تعين او پابندي نه ده لګولې او نه ئې کوم ځانګړی هيئت او ډول ښودلی دئ، بلکي د هري سيمي او هر ځای موسم، اب او هوا ته په کتلو سره ئې په لباس کي د هغه ځای او موسم موافق د لباس اغوستلو جواز ورکړي دي. البته اسلام د لباس (جامې) په لړ کي ځيني مهم او بنسټيز اصول او شرطونه او آداب بيان کړي دي چي د هغوی لحاظ ساتل په هر حال لازم او ضروري دي[1].

---

[1] فان الاسلام ... لم يقرر الانسان نوعا خاصا، او هيئة خاصة من اللباس ... و انما وضع مجموعة من المبادی [تکملة فتح الملهم: څلرم ټوک - ۸۷]. فان الاسلام لم يقصره على نوع دون نوع و لم يقرر للانسان نوعا خاصا او هيئة خاصة من اللباس و لا اسلو باخاصا للمعيشة و انما وضع مجموعة من المبادی [تکملة فتح الملهم: څلرم ټوک - ۸۷ مخ، کتاب اللباس].

# د لباس (جامې) شرطونه

لومړی: لباس باید داسي وي چي په مکمل توګه ستر پټ کړي[1].

دوهم: لباس باید دونده نازک او په بدن پوري موښتی نه وي چي د بدن مستور اندامونه ځني ښکاره سي[2].

دريم: په لباس (جامه) کي باید د کافرانو او فاسقانو سره مشابهت ونه سي[3].

څلرم: نارينه باید زنانه لباس (جامه) او ښځي باید مردانه لباس (جامه) وانه غوندي[4].

پنځم: کوم لباس (جامه) چي پر تکبر، فخر او اسراف دلالت کوي

---

[1] ان اللباس يجب ان يكون ساتر العورة الانسان [تكملة فتح الملهم: څلرم ټوک – ۸۸ مخ].

[2] عن ام سلمة قالت استيقيظ النبى ﷺ ذات ليلة فقال سبحان الله ماذا انزل الليلة من الفتن و ماذا فتح من الخزائن ايقظو صواحبات الحجر فرب كاسيات فى الدنيا عارية فى الاخرة [صحيح البخاري: اول ټوک – ۱۷]. لا يحل النظر الى عورة غيره فوق ثوب ملتزق بها يصف حجمها [ردالمحتار: شپږم ټوک – ۳۲٦ مخ، فصل فى النظر والمس].

[3] عن ابن عمر قال قال النبى ﷺ من تشبه بقوم فهو منهم [ابو داود: دوهم ټوک – ۲۰۳ مخ، كتاب اللباس].

[4] يحرم تشبه النساء بالرجال فى زيهن فلا يجوز للمراة ان تلبس لباسا خاصا بالرجال لانه لعن المتشبهين من الرجال بالنساء والمتشبهات من النساء بالرجال [الموسعة الفقهيه].

نو په کار دا دي چي پرهېز ځني وسي[1].

شپږم: تر خپل مالي توان او طاقت زيات د قيمتي لباس اهتمام بايد ونه کړل سي، او همدارنګه دولتمند او مالدار شخص بايد داسي کمزوری او ضعيف لباس وانه غوندي چي خلګ ئې مفلس او فقير وګڼي[2].

اووم: د نارينه وو له پاره خاص سور لباس (جامه) اغوستل مکروه دي، البته که د سور رنګه سره بل رنګ ګډ وو يا د ځان سره بل راز ليکي هم ولري پروا نه لري[3].

اتم: داسي جامه اغوستل چي په هغه کي تصويرونه وي حرام دي[4].

نهم: د نارينه وو له پاره د اصلي ورېښم لباس اغوستل حرام دي،

---

(1) عن ابي هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ : لا ينظر الله يوم القيامة الى من جراء ازاره بطراً [صحيح البخاري: دوهم ټوک – ۵۱ مخ، باب من جرثوبه من الخيلاء]. عن ابن عمر قال قال رسول ﷺ من لبس ثوب شهرة فی الدنيا البسه الله ثوب مذلة يوم القيامة [مسند احمد : نهم ټوک – ۴۷۶ مخ، ابو داود : څلرم ټوک – ۷۷ مخ].

(2) هناک شيئين فی الحقيقة ... احدهما مطلوب و الاخر مذموم فالمطلوب ترک الشح و يختلف باختلاف طبقات الناس فالذی هو فی الملوک شح ربما يکون اسرافاً فی حق الفقير ... و المذموم الامعان فی التکلف و المراة و التفاخر بالثياب و کسر قلوب الفقراء [تکملة فتح الملهم: څلرم ټوک – ۸۹ مخ، فتاوی هنديه: پنځم ټوک – ۳۳۳ مخ].

(3) عن عبد الله بن عمرو قال مرعلی النبی ﷺ رجل عليه ثوبان احمران فسلم عليه فلم يرد النبی ﷺ عليه [ابو داود : دوهم ټوک – ۹۲ مخ].

(4) يحرم علی الرجل والمراة لبس الثياب التی عليها تصاوير الحيوانات علی الاصح اه [الموسعة الفقهية: شپږم ټوک – ۱۳۴ مخ].

که د ځلورو ګوتو په اندازه وي پروا نه لري[1].

لسم: د نارینه پایڅې باید تر بجلکو لوړې وي او د ښځو دا باید تر بجلکو کښته او د پښو مخونه په پټ وي[2].

## د جامې آداب

1. جامه باید داسي وي چي د عورت د پټوالي تر څنګ د شرم او حیا غوښتني هم پوره کولای سي (کتاب الاداب).
2. کله چي کومه نوې جامه اغوندی نو د الله ﷻ د شکر د ادا کولو په خاطر دا دعا ووایاست: اللهم لک الحمد انت کسوتنیه اسئلک خیره و خیرما صنع له و اعوذبک من شرما صنع له. ژباړه: اې الله! یوازي تا لره حمد او ثنا ده تا دا جامه ما ته راکړه زه د هغې خیر او د هغې څه خیر او برکت له تا څخه غواړم، د کوم څه له پاره چي دا جامه جوړه سوې ده او زه له تا څخه پناه غواړم د هغه له شر څخه (کتاب الاداب).
3. د الله ﷻ د نعمت د اظهار او د شکر پر ځای کولو په غرض چي

[1] عن ابی موسی الاشعری ان النبی ﷺ قال احل الذهب والحریر للاناث من امتی و احرم علی ذکورها [مشکوة المصابیح: دوهم ټوک – ۳۷۵ مخ، کتاب اللباس]. حرم للرجال لا للمراة لبس الحریر الاقدر اربع اصابع [البحر الرائق: اتم ټوک – ۱۸۹ مخ].

[2] عن ابی هریرة رضی الله عنه عن النبی ﷺ قال ما اسفل الکعبین من الازار ففی النای [صحیح البخاري: دوهم ټوک – ۱۸۲ مخ]. باب ما اسفل من الکعبین فهو فی النار. عن ام سلمة زوج النبی ﷺ قالت لرسول الله ﷺ حین ذکر الازار فالمراة یا رسول الله ﷺ قال ترخی شبراً قالت ام سلمة اذ ینکشف عنها اذ ذراعا لا تزید علیه [رواه ابو داود: دوهم ټوک – ۱۱۱ مخ].

ځو مره ښه جامه وي وايې غوندي (کتاب الاداب).

4. که څوک کومه جامه درته په تحفه او ډالۍ کې راوړي، نو تاسي ئې په ډېره خوښي ځني واخلئ او ردوی ئې مه، که څه هم ورته اړتیا نه لري، بلکي تاسي ئې په داسي توګه ځني واخلئ لکه اړتیا او ضرورت چي ورته لري ځکه په دې سره د هغه زړه خوشحاله کېږي (ابن ماجه).
5. د شهرت او ځان ښودلو په نیت جامه مه اغوندئ (ابن ماجه).
6. کله چي کومه جامه اغوندی نو د راسته طرفه ئې شروع کوئ (بخاري).
7. کله چي کومه جامه کاږی نو د چپه اندام څخه ئې شروع کوئ (په اسلام کي ټولنيز اداب).
8. کومه جامه چي نور نه استعمالوی خو د استعمال وړ وي نو کوم غریب ته ئې ورکړئ (شاه راه سنت).
9. جامه باید تل پاکه او سپېڅلې وي، ځکه خیر نه او بدبویه جامه نبي ﷺ نه خوښول (شاه راه سنت - د ټولنيز آداب په حواله).
10. د پونډۍ تر نیمایي پوري پایڅې ځړول مستحب دي (شرح شمائل ترمذي).

# د لباس (جامې) ځيني مسائل

## د پرتاګه او لنګ د بجلکو څخه لاندي پرېښودلو حکم

کمیس، پرتوګ، لنګ او پټو او داسي نور د بجلکو څخه لاندي

کښته کول په عامه توګه د تکبر او غرور علامه (نخښه) وي، د دې وجې څخه نبي کريم ﷺ منع څني کړې ده. کميس، پرتوګ او داسې نور لکه څرنګه چې په لمانځه کې لاندې تر بجلکو ځړول حرام او ممنوع دي همدارنګه د لمانځه څخه پرته هم حرام او ممنوع دي[1].

## د مسلمانانو له پاره د نېکټايي اچول جائز نه دي

د نېکټايي استعمال قطعاً د مسلمان د شان سره نه ښايي. علماء کرام فرمايي چې نېکټايي د صليب نښانه ده او صليب د نصاراوو مذهبي شعار دئ، له دې وجهې د مسلمانانو له پاره د نېکټايي اچول له کفارو سره د مشابهت مترادف دي.

په داسې حال کې چې الله تعالی ﷻ او نبي کريم ﷺ د مسلمان قوم له پاره د کافرانو سره مشابهت منع کړی دئ، او د نبي کريم ﷺ ارشاد دئ چې د قيامت په ورځ به انسان د هغه قوم سره پورته کېږي چې په دنيا کې ئې د کوم قوم سره مشابهت غوره کړی وي، د دې وجهې د نېکټايي په غاړه کول د مسلمان له پاره جائز نه دي[2].

---

[1] عن ابي هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ ما اسفل من الكعبين من الازار فى النار [مشكوة المصابيح: دوهم ټوک - ۳۹۵ مخ، كتاب اللباس]. ينبغى ان يكون الازار فوق الكعبين الى نصف الساق و هذا فى حق الرجال و اما النساء فيرخين ازوارهن اسفل من كعب يستر ظهر قدمهن [الفتاوى الهنديه: پنځم ټوک - ۳۳۳ مخ، الباب التاسع فى اللبس].

[2] و لا تركنوا الى الذين ظلموا فتمسكم النار [هود: ۱۱۳]. عن ابن عمر قال قال النبى ﷺ من تشبه بقوم فهم منهم [ابوداود: دوهم ټوک - ۲۰۳ مخ، كتاب اللباس]. و

# د خامکي غاړو او پټوانو حکم

د غاړو او پټوانو په خامک سره جوړول په دې کي دوې خبري دي:

اول: د جامو ښایسته کول یا ښایسته جامې اغوستل او زینت کول چي د شریعت مقدسه د احکامو او جزئیاتو سره مخالفت ونه لري جائز دي، که ئې نیت د تکبر نه وو. علامه د تکبر دا ده چي د خلګو سره د دې جامې تر اغوستلو مخکي ده کومه وضعه او اخلاق کول د دغو جامو په اغوستلو سره په هغه کي تغیر راولي.

دوهم: ځیني خلګ دا اشتباه کوي چي په غاړو او پټوانو کي سوڼ کارېږي او هغه ورېښم دي، اصلي خبره دا ده چي که دغه سوڼ اصلي او حقیقي ورېښم وي نو دا واضحه ده چي دغه غاړه او پټو اغوستل مکروه تحریمي ګرځي. ولي ورېښم چي تر څلورو ګوتو اندازه بالا سي نو اغوستل ئې مکروه تحریمي دي.

او که دغه سوڼ ورېښم نه وي یا مصنوعي ورېښم وي، نو په هره اندازه چي وي اغوستل ئې جائز دي، او هغه سوڼ چي اوس په بازارو کي مروج دي غالباً اصلي او حقیقي ورېښم نه دي[1].



---

ایضاً عن عائشة ان رسول الله ﷺ کان لا یترک فی بیته شیاء فیه تصلیب الاقصبة [ابو داود: دوهم ټوک – ۲۱٦ مخ، باب فی الصلیب فی الثوب].

[1] قال علیه السلام: ان الله یحب ان یری اثر نعمته علی عبده [ردالمحتار: پنځم ټوک – ۲۴۷ مخ]. و مباح و هو الثوب الجمیل للتزین فی الاعیاد و الجمع و مجامع الناس [ردالمحتار: پنځم ټوک – ۲۴۷ مخ].

## په جامو کي د سرو زرو تنۍ لګول څه حکم لري؟

په اسلام کي د سرو زرو او وريښمو استعمال د سړيو له پاره ناجائز او ممنوع دئ. نبي عليه السلام د خپل امت پر نارينه وو د دغو دواړو شيانو استعمالول حرام ګرځولي دي، ليکن فقهاء په دې تصريح کړې ده چي سړی که چيري د وريښمو يا سرو زرو تنۍ په خپلو جامو کي استعمال کړي نو اګر که اسراف دئ ليکن حرام نه دئ[1].

## د سړو له پاره د سرو زرو د ګوتمۍ استعمالولو حکم

په ځينو ځايونو کي سړی د سرو زرو ګوتمۍ په ګوته کوي په ځانګړي ډول د واده په وخت کي د خسر د کور د خوا ورکول کېږي، سره د دې چي دا حرام دئ ځکه نبي کريم ﷺ سره زر او وريښم خپل د امت پر سړيو باندي حرام کړي دي، سره زر که د ګوتمۍ په شکل کي وي او

---

الاصل فی اللباس و الزينة الحل والاباحة سواء فی الثوب و البدن المکان [الفقهه الاسلامي: څلرم ټوک - ٢٦٣٢]. لبس الثياب الجميلة مباح اذا لم يکن للتکبر و تفسيره اينکون معها کما کان قبلها [الفتاوی السراجيه: ٧٥ مخ]. يحرم لبس الحرير ... الاقدر اربع اصابع [الدرالمختار: پنځم ټوک - ٢۴٧].

[1] لا بأس بازراء الديباج والذهب [درالمختار علی هامش ردالمحتار: پنځم ټوک - ٢۵٠ مخ، کتاب الحضر والاباحة فصل اللبس. و لا باس بمسمار الذهب يجعل فی حجر الفصل ای في ثقبه لانه تابه کالعلم فی الثوب فلايعه لا بساله [الهدايه: څلرم ټوک - ۴۵٧ مخ، کتاب الکراهية فصل فی اللبس].

يا د نورو ګڼو په شکل کي وي د سړيو له پاره حرام دي[1].

## د سپينو زرو د ګوتمۍ استعمالول بې له ضرورته مناسب نه دي

د سپينو زرو د ګوتمۍ له پاره د حاکم او قاضي چونکه دا ضرورت دئ چي د خلکو په اسنادو باندي مهرونه لګوي او په مخکي زمانو کي دا مهر په ګوتمۍ سره وو نو د دې له پاره هغو دا رنګه ګوتمۍ استعمالولې ليکن فقهاء وايي چي د قاضي او حاکم څخه پرته ئې نور خلګ هم استعمالولی سي، ليکن بهتره دا ده چي بې له ضرورته دي ئې نه استعمالوي او د استعمال په صورت کي بايد د ښايست او تکبر له نيت څخه پرهېز وکړي[2].

## د پتلون اغوستلو حکم

اوس مهال په نړۍ کي د پتلون او کورتۍ رواج دونه عام سوی دئ، چي آن په زياتو اسلامي هيوادونو کي مسلمان وګړو د کورتۍ او

---

[1] التختم بالذهب حرام فی الصحيح کذا فی الوجيز لکردی [الفتاوی الهنديه: پنځم ټوک – ۳۳۵، الباب العاشر فی استعمال الذهب والفضة، التختم بالذهب حرام: البحر الرائق: اتم ټوک – ۱۹۰ مخ، کتاب الکراهية، فصل فی اللبس].

[2] و ان تختم بالفضة قالو ان قصد به التجبر يکره و ان قصد به التختم و نحوه لا يکره اهلکن سياتی ان ترک التختم لمن لا يحتاج الی الختم افضل [رد المحتار: شپږم ټوک – ۳۵۹ مخ، فصل فی اللبس]. يجوز التختم بالفضة اذا کان علی هيئة الرجال اما اذ کان علی هيئة النساء يکره ... و يکره للرجل بما سوی الفضة [الفتاوی الهنديه: پنځم ټوک – ۳۳۵ مخ، باب العاشر فی استعمال الذهب و الفضة].

پتلون اغوستل پیل کړي دي، په دې اړه (تشبه) چي شریعت منع ګرځولې ده مغلوبه او له منځه تللې ده. مطلب دا چي د خلګو د ذهنه څخه اوس مهال دا خبر وتلې ده چي دا خاص د پردو لباس دئ او په دا سره یوازي هغه پیژندل کېږي، نو ځکه د کورتۍ او پتلون اغوستل حرام نه دي.

البته زموږ په سیمو کي دا د صالحینو لباس نه دئ، بلکي د فاسقانو لباس دئ، نو له دې کبله پرېښوول ئې غوره او افضل دئ. دغه حکم د هغه پتلون او هغه لباس په اړوند دئ چي په اغوستلو سره ئې د انسان عزت نه متاثر کېږي او نه ئې هغه اندامونه چي د هغوی پټول واجب دي، رابرسېره کېږي او نه د هغوی شکل معلومېږي او که چیري پتلون دوندي تنګ او نازک او په بدن پوري موښتی وو چي د انسان عزت ته ئې تاوان رسوی او هغه اندامونه چي د هغوی پټول واجب دي د هغو صورت او شکل ئې ښکاره کوی لکه اوس مهال چي په زیاتو ځوانانو کي د دا رنګه پتلون اغوستلو شوق او رواج پیدا کېږي. نو دا رنګه پتلون اغوستل حرام دي آن تر دې چي و هغه کس ته چي دغه رنګه پتلون ئې اغوستی وي د هغه و راپورته سوو اندامونو ته په غور او ځیر سره کتل حرام او ناجائز دي(1).

(1) عن ابن عمر رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من تشبه بقوم فهو منهم [سنن ابي داود کتاب اللباس: دوهم ټوک – ۵۵۸ مخ، باب فی لبس الشهرة].
قال ملا علي قاري رحمة الله عليه: ای من شبه نفسه بالکفار مثلاً فی اللباس و غیره او بالفساق او الفجار او باهل التصوف الصلحاء الابرار فهو منهم ای فی الاثم او الخیر عندالله تعالی ... اه [مرقات المفاتیح: الفصل الثانی: اتم ټوک – ۱۵۵ مخ].

و على هذا لا يحل النظر الى عورة غيره فوق ثوب ملتزق بها يصف حجمها فيحل مامر على ما اذلم يصف حجمها [ردالمختار: شپږم ټوک - ٣٦٦ مخ، باب فی النظر واللمس]، [تکملة فتح الملهم: څلرم ټوک - ٨٨ مخ].
آج کل پينټ شرټ (کوټ پتلون) اور انگريزی بال کا اگر چه مسلمانون مين عام رواج هوګياهې مگر اس کي باوجود اسی انگريزی لباس هی سمجها جاتاهی الغرض تشبه بالکفار نه بهی هوتو تشبه بالفساق مين تو کوئی شبه نهين.
لهذا ايسی لباس سی احتراز ضروری هی پتلون کی متعلق يه تفصيل اس وقت هې جب اس سی واجب الستر اعضاء کی بناوټ اور حجم نظر نه آتاهو اگر پتلون اتنی چست اور تنگ هو که اس سی اعضاء کی بناوټ اور حجم نظر آتاهو جيسا که آج کل ايسی پتلون کاکثرت سی رواج هوګيا هې. تو اس کو پهننا اور لوګون کو دکهانا اور ديکهنا سب ناجائز هې [فتاوی محموديه: ١٩ټوک - ٢٨٠ مخ].

# مأخذونه

1. قرآنکریم
2. الجامع للاحکام القرآن: ابو عبدالله محمد بن احمد انصاري قرطبي.
3. التفسير المنير: وهبة الزحيلي
4. روح البيان: اسماعيل حقي بن مصطفى الاستنبولي
5. معارف القرآن: مفتي محمد شفيع صاحب
6. تفسير الجلالين: جلال الدين سيوطي
7. تفسير عزيزي: شاه عبدالعزيز
8. روح المعاني: شهاب الدين محمود الوسي
9. صحيح البخاري: محمد بن اسمعيل بخاري
10. صحيح مسلم: مسلم بن حجاج القشيري
11. سنن الترمذي: محمد بن عيسى ترمذي
12. سنن ابي داود: سليمان بن اشعث سجستاني
13. كنزالعمال: على المتقى بن حسام الدين الهندي
14. مشكوة المصابيح: ابو عبدالله محمد
15. الطبقات الكبرى: للشعراني
16. مصنف ابن ابي شيبه: عبدالله بن محمد بن ابي شيبه

17. مستدرک على الصحيحين: ابو عبد الله الحاكم

18. جامع الحديث

19. مسند الفردوس

20. مسند احمد: امام احمد بن حنبل

21. عمدة القاري: للعلامة بدر الدين عيني

22. مرقات: ملا علي قاري

23. خصائل نبوي: مولانا زكريا رحمۃ اللہ علیہ

24. عرف الشذي: شاه انور شاه كشميري رحمۃ اللہ علیہ

25. عون المعبود

26. تحفة الاحوذي: محمد عبدالرحمن بن عبدالرحيم المباركفوري

27. سراج المنير

28. تكملة فتح الملهم: علامه محمد تقي عثماني

29. الوفاء: لابن جوزي

30. شمائل الترمذي: لابى عيسى الترمذي

31. انوار محمود: شاه انور شاه كشميري

32. شرح المواهب اللدنية: محمد بن عبد الباقي الزرقاني

33. مدخل: ابو عبد الله محمد بن محمد العبدري القبيلي

34. فضائل صدقات: مولانا زكريا رحمۃ اللہ علیہ

35. اعانة الطالبين

36. شرح عين العلم: ملا علي قاري رحمۃ اللہ علیہ

37. سبل الهداى والرشاد: ابو عبد الله محمد ابن يوسف الشامي

38. غذ الالباب: محمد بن احمد بن سالم السفاريني الحنبلي
39. حيات صحابه: محمد يوسف كاندهلوي
40. حاشية اعانة الطالبين
41. در المختار: علاء الدين حصكفى رحمة الله عليه
42. رد المحتار: ابن عابدين شامي
43. الهداية: ابو الحسن برهان الدين مرغيناني
44. الفقهة الاسلامي: وهبة الزحيلي
45. بدائع الصنائع: علاء الدين سمرقندي
46. البحر الرائق: ابن نجيم مصري
47. شرح الوقاية: عبيد الله بن مسعود
48. قواعد الفقه: سيد محمد عميم المجددي البركتي
49. الموسعة الفقهيه: محكمه اوقاف كويت
50. تبين الحقائق: جلال الدين بن يوسف زيلعي
51. فتاوى الهنديه: مولانا نظام و جماعة من علماء الهند الاعلام
52. فتاوى كامليه: شيخ محمد كامل ابن مصطفى الطرابلسي الحنفى
53. خلاصة الفتاوى: عبد الرشيد طاهر بخاري
54. الحاوي للفتاوى: جلال الدين سيوطي
55. خير الفتاوى: خير محمد جالندهري
56. نفع المفتى والسائل: عبد الحى لكهنوي
57. الفتاوى السراجيه
58. محمود الفتاوى: مفتي خداى نظر

59. فتاوى حقانيه: مولانا عبدالحق اكوروي

60. فتاوى محموديه: مولانا محمود حسن گنگوهي

61. احسن الفتاوى: عبدالحى لكهنوى

62. اپ كي مسائل اور اُن كا حل: محمد يوسف لدهيانوي

63. فتاوى رحيميه: سيد عبدالرحيم لاجپوري

64. اوزان شرعيه: مفتي محمد شفيع صاحب رحمة الله عليه

65. سنن نبوي اور جديد ساينس

66. نقش حيات: شيخ احمد مدني رحمة الله عليه

67. قطب الارشاد: فقير الله بن عبدالرحمن الحنفي

68. شرح شرعة الاسلام

69. عمامه كي فضائل اور مسائل: مولانا روح الله نقشبندي

70. الحجة التامة فى لبس العمامة: سخى داد خوستى

71. په اسلام كي ټولنيز آداب: سيد احمد صابر

72. كتاب الاداب: فواد بن عبدالعزيز الشهلوب